# خپلواکي پوهنه
# غلځي افغان ولسمشران



پروفیسر ډاکتر قاضي حفیظ الله ښاد جبارخېل

۱۳۸۸ ل. هـ

# خپلواکي پوهنه

# غلځي افغان ولسمشران

پروفیسر ډاکتر قاضي حفیظ الله ښاد جبارخېل

۱۳۸۸ ل. هـ

**د کتاب پېژندنه :**

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | خپلواکي پوهنه غلځي افغان ولسمشران |
| لیکوال | : | ډاکټر قاضي حفیظ الله ښاد جبارخېل |
| خپرونکی | : | د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز - پېښور |
| کمپوز او ډیزاین | : | د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز |
| د چاپ شمېر | : | (۵۰۰) ټوکه |
| د چاپ کال | : | ۱۳۸۸ ل هـ |

# ډالـــــــۍ

دا کتـاب خپلـې خواخـوږې مـور او زړه خـوگي پـه
اسلامي علومو پوه استاد پلار ته ډالۍ کوم او ثواب
کـې يـې لـه الله تعـالى څـان مـور او پـلار او ټولـو
مسلمانان شريکېدل غواړم

قاضي حفيظ الله بناد جبارخېل

# لړلیک

# سریزه

د الله تعالی حمد او ستاینه کوم او د حضرت محمد مصطفی(ص) او د ده په ال. اصحابو او تابعینو درود وایم.

هیله من یم. چې په افغان خپلواکي پوهانو کښې د اتل میرویس نیکه په اړه یوه رساله ولیکم دا. چې د خپلواکي پوهنې افغان اتلان د اسلام لارویان دي: نو له ابو مسلم خراساني څخه نیولې ان تر ننني غلجي ملا عمر پورې. چې په سیمه کښې پراخه سیاسي شتون لري، خو زما موخه یوائې د غلځایي ولسمشرانو څېړنه او د هغو خپلواکي پوهنه ده. چې خپلواکي خوښوونکي مینه وال بې په رڼا کښې سوچ وکړي

د دغو مشرانو د پوهنیزو هڅو څېړنه را ته یو غوره کار ښکاره شو او وپوهېدم. چې په عملي کولو یې خپلواکي هم خوندي کېدلای شي. د دغه هدف او سوبې د ترسره کولو لپاره د پېښور پوهنتون او پښتو اکاډمۍ پرلیکیتونونو (کتابتونونو) سربېره د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز لیکیتون ته لاړم. قضایي لیکیتون او داسې نور لیکیتوتونونه مې ولټول. د میرویس نیکه په اړه مې. چې څه نا څه څېړنه وکړه. د خپلواکي یوه میریس نیکه د خپلواکۍ پوهنې نوم مې ورکړ.

خدای تعالی دې را ته د دغه کار د بشپړولو توان راکړي او له هر ډول. شر. ضرر. نقص. فساد او خفګان څخه دې مونږ. زمونږ مور او پلار او ټول مسلمانان وساتي: عفو. بخښنه او مغفرت دې را ته وکړي. چې رضا شي او د خپلو ټولو نعمتونو پېرزوینه را باندې وکړي.

آمین یا رب العالمین.

## خپلواکي پوه میرویس نیکه (۱۱۲۷-۱۰۸۴ه):

د میرویس نیکه نسب: حاجي میرویس خان د شاه عالم زوی. هغه د کرم زوی، هغه د مند زوی. هغه د عمر زوی. هغه د قطب زوی. هغه د اسحق زوی. هغه د حسین زوی، هغه د ملکیار زوی. هغه د هوتک زوی. هغه د بارو زوی، هغه د توران زوی او هغه د غلځي زوی دی.

**د میرویس خان زوی کېدل:**

د میرویس خان د زېږېدو نېټه پوره څرګنده نه ده. خو په تخمیني نېټه پر ۱۰۸۴ ل.هـ کال د کندهار ولایت په پلارني ټاټوبي کښې دنیا ته راغلی دی. دا. چې د شتمنې. مخورې او مسلمانې کورنۍ زوی و: نو په غوږ کښې یې د آذان او نوم اېښودلو. عقیقې او داسې نورې دیني او مذهبي چارې ترسره شوې دي.

**روزنه:**

د خپلې هوښیارې او مسلمانې پښتنې مور په غېره کښې وروزل شو. د خبرو. ناستې ولاړې. تلو او راتلو اداب. د کشر او مشر د حقوقو پېژندل. د اسلام پنځه بناوې. د قرآن زده کړه په ناظره. تاریخپوهنه. لیک او لوست یې د ژوند په لومړي پړاو کښې زده کړل.

**ښوونه او زده کړه:**

د لیک. لوست او د قرآن مجید له زده کړې پسې یې د وخت متداوله علوم: فقه او ادب هم زده کړل. د تجارت په کاروبار اخته شو او ځان یې د هند او ایران له حالاتو خبر کړ. پخپلو ځانګړیو پیسو به یې سوغاتونه اخستل: د هند او ایران د دولتونو اغېزمنو شخصیتونو ته یې ورکول. خو هیڅوک د دغه درانه سوداګر پر موخه نه پوهېدل.

د امانت، اخلاص، زړه سواندی، زیرکی، ذکاوت او لوړ استعداد څښتن و. په عربي، پارسي او هندي ژبو پوهېده. په ادب، تاریخ او فلسفه کښې يې پوره مهارت درلود. د پښتنو په مزاج، روایاتو او ملي تاریخ خبرو. په کلام کښې يې سپېڅلتیا لرله؛ د عربستان علماء یې په عربي ژبه قانع کړل او پر حالاتو یې ور سره اوږد بحث کړی دی. دایران په دربار کښې یې لار وموندو او درباریان یې تر اغېز لاندې راغلل [حداد فرهاد - دافغان ملي تاریخ، د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز- ۱۳۸۳ل ه].

سر بېره پر دې یو تکړه سیاست پوه و او ملي شخصیت ترې جوړ شو. دمیرویس نیکه لومړی کار له اولیاوو سره و، دلویې مفکورې دلرلو له کبله يې لکه پاچا خلکو ته اسونه بخښل: په بلوچستان، هند او ایران کښې يې دکار خلک لټول، چې وروسته یې توضیحات مخې ته راځي.

**د میرویس خان مور (نازو انا) ښځه او سخرګنۍ:**

نژدې درې سوه کاله پخوا دکلات او کندهار ترمنځ دکابل د سرک پرغاړه یوه جګه او لوړه کلا ښکاریدله، چې دکلات شمال ختیځ لوري ته پرته وه. دغه کلا د پښتنو ملي مشر سلطان ملخي توخي جوړه کړې وه او د دې کلا څښتن ته له غزني نیولې ان تر جلدلکه پورې ولسونه تابع ول؛ ځکه، چې خپلواکه واکمني یې پرې درلوده.

په همدې کلا کښې د سلطان ملخي توخي په کورنۍ کښې یوه جلۍ دنیا ته راغله او د(نازو) نوم یې ورباندې کېښود. پلار یې روزنې ته پاملرنه وروارولوله کله، چې د دې پلار سلطان ملخي غرد ته نژدې په یوه جګړه کښې په حق ورسېد ورور یې (حاجي عادل خان) د خپل پلار

د غیج اخستلو لپاره جنگ ته ولاړ؛ نو د ولس مشري. د کلي او کور ساتنه هم نازو ته ور په غاړه شوه.

نازو، چې یوه ښکلې تکړه او میړنۍ نجلۍ وه، د یوه زلمي په څېر یې توره تر ملا کړه او خپل ټاټوبی او چاپېریال یې له خپلو ځو تنو تربرانو سره د پردیو له یرغله ساته دا مېلمه پاله وه، مېلمنو ته به یې ډوډۍ. کالي او جامې ورکولې. چې د دې د سخاوت نوم له خیبره تر کوهستانه خپور شوی و.

دغه مهال و، چې د هوتک (ښالم خان) په نکاح کښې شوه او خدای تعالی ورته ځلور زامن ورکړل. د دې مشر زوی میرویس خان و، میرویس د دغې پښتنې مېرمنې (نازو) په غېږ کې لوی او وروزل شو کور، کلي او هېواد پرې وویاړل. چې د دې مېړنۍ غیرتي، زړور او خپلواکي پوه شخصیت ملت ته وړاندې کړ.

دا دومره عابده، صالحه او نېک عمله مېرمن وه، چې هیڅکله یې خپل اولاد ته بې اودسه او بې طهارته شیدې نه ورکولې. مېرمن نازو، چې څومره پاخه منگ ته رسېده: هومره یې له علم او ادب سره مینه کوله. چې ډېر ژر ترې تکړه شاعره جوړه شوه او خواږه اشعار یې ټولنې ته وړاندې کړل. میرویس خان، چې نرۍ ته راغی؛ مور یې خوب ولید، چې بیبټ نیکه ورته وایي:

لورې! دا هلک ښه وروزه. کله، چې لوی شي: نو لوی لوی کارونه به وکړي. حج ته به ولاړ شي او د ده له پښته به نېک پادشاهان او شاهان پیدا شي. دوی به پر دیني احکامو حکم کوي. همد لامل و، چې نازو انا د میرویس خان روزنې او پالنې ته ځانگړې پام درلود؛ له شپږ کلنۍ څخه یې د دین ټول فرائض په یوه کال کښې ورزده کړل او ورته ویل به یې: د بیبټ نیکه له خولې لوی لوی کارونه در په غاړه دي: د خدای

تعالی عبادت او دخلکو خدمت کوه، چې ولس ستا تر سیوري لاندې ارام واوسي.

میرویس خان، چې کله زلمی شو په هر مجلس کښې به یې د مور وصیت یاداوه.

د میرویس خان میرمن (خانزاده) نومېدله د خوانبې نوم یې (درخو) او د سخر یې (جعفر خان) و. دی د سدوزو مشهور خان و. د دغې خپلوۍ له برکته میرویس خان نیکه نه یوائې په غلجو کښې د عزت لرونکی و، بلکې درانو کښې یې هم محبوبیت درلود.

میرویس خان نیکه خاني کوله، خو د دې لپاره، چې د سخر شتمني زیاته کړي، د سوداګر په نامه نومیالی شو. دا، چې ده د هند پر لوري تجارت کاوه؛ نو خورا ډېره شمتني یې وګټله او مال لرونکی دولتمن سړی شو. مېرویس نیکه د صفویانو اغېزمن کسان په هند کښې پر ډالیو او تحفو راضي کول د حج په سفر کښې یې د حجاز له علماوو ټولنیزې فتواګانې هم اخستتې دې داځواک یې د خپلې ځواکمنې مور له پوهې، اقتصاد او ډېرې شتمنۍ دېنه اغېز پر لامل خپل کړی و.

د میرویس نیکه د مور (نازو انا) شعري ببلګه ((د پښتنې مېرمنو)) په کتاب کې داسې راغلې ده:

سحرګه وه د نرګس لېمه لانده
څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده
ماوې څه دي ښکلی ګله ولې ژاړې
ده وې ژوند مې دی یوه خوله خندېده

نازو انا خپله کورنۍ له پښتو ادب او پښتني کولتور سره بلده کړې وه. بي بي زینبه د میرویس نیکه لور هم یوه ادیبه او شاعره وه، چې شعري ببلګې یې موجودې دي.

دې د حربي نابغه اتل سيدال خان ناسر په اړه ويلي، چې:

که سر دی اصفهان د ملکو سر دی
چې اصفهان نژدې کوي سيدال ناسر دی

دغه شعر پر ۱۳۴۷ ل.هـ کال په شکر دره کښې د سيدال ناسر پر قبر میرمن کبرا مظهري هغې غونډۍ ته ولوست، چې غلام محمد (فرهاد) لخوا يې د يادګار ډبره کېښودل شوه، چې شرحه پرې پوهاند حبيبي ليکلې وه.

دغې غونډۍ ته د شکر درې ناسراو د سيدال کورنۍ راغلي وه. يعنې ۲۲۷ کاله وروسته د ده د قبر لوحه وليکل شوه [حداد فرهاد قدرت الله- هماغه اثر. ۷۲۰ مخ].

**د میرویس خان نيکه بنسټيز سياسي اړخونه:**

میرویس خان د خپل لوړ استعداد له مخې د غلجيانو د قوم مشرۍ ته ورسيد، خو دابداليانو سترګې هم وراوښتلې؛ ځکه، چې په هرات کښې د تیموريانو واکمني له منځه تلې وه او د افغانستان شمالي او جنوبي سيمې هم د ازبکانو او د هند د مغلي واکمنو له لاسه وتلې وې او هرات صفويانو ته په لاس ورغلی و.

په دې وخت کښې د ايران پادشاه صفوي شاه حسين و، چې د دې سيمو داداري او اراملو لپاره يې يو تن قزلباش، چې ګرګين نومول شوی و. د کندهار ولايت حکمران وټاکه دی. چې ډېر ظالم سړی و. زور او زياتی يې پيل کړ ډېر مشران يې جلا وطنه او په ډول ډول عذابو يې وځورول.

میرویس نيکه، چې د همدې شاه حسين معاصرو. د پوره زړورتيا او ملي پاملرنې لرونکی سړی و. ده ليدل، چې د ايران صفوي دولت د افغانستان په لويديځو سيمو کې ببلابېلې واکمنۍ خاري او د هند

مغلي دولت د افغانستان په ختیځو سیمو کښې ان تر مرکزي سیمو لاسوهنې کوي؛ نو میرویس نیکه په پوره تدبیر د پښتنو خپلواکي غوښتنې ته ځوانان وهڅول او په کندهار کښې د صفوي عمالو په مقابل کښې پاڅون ته ودرېدل. د دغه ملي پاڅون او د دغه نهضت د ځانګو ځنګوونکي هوتکي میرویس نیکه د مشرۍ پېژندنې پر پراخ بنسټ د مخورو افغانانو د خپلواکي غوښتنې خوځښت روان وساتلو، د ښکېلاک کورنې او بهرنې ځواکونه یې دړې وړې کړل او د یوه مقتدر ملي دولت بنسټ یې له پوره ځنډ وروسته کېښود، چې د کندهار استحکام او د اصفهان فتحه د میرویس خان د زوی (شاه محمود هوتک) په لاس یې ښکاره لاسته راوړنه ده.

د مغلي لوټماریو، نادودو او د ګرګین د ظلمونو او جنایاتو غوښتنه دا وه، چې د افغانستان غیور ملت د ښکېلاک او زېښناک (ظلم او ستم) لاندې پرله پسې ترلی وساتي او دا ځواک ونه مومي، چې سر وښوروي یا څه ووایي او یا څه ولیکي. یعنې بندیان، ګونګیان، بې لاسو او بې پښو پاتې شي. خو سترځپښتن غیرتمن او توریالي افغانان له استعمارچیانو او دهغو له ظلمونو وساتل او خپلواکي یې ور په برخه کړه.

حاجي میرخان علیه الرحمه د افغانانو تاتوبي او غیور ملت د یرغلګرو له منګلو په ماهرانه سیاست خپلواک کړل او دښمنان یې د کندهار له ښاره وشړل

د پردو یرغلګرو ظلمونه تل نه پاتې کېږي او د ظلم کاسه نسکوره ده. خدای تعالی د ظالم او متکبر ظلم او کبر ته زوال ورکوي یعنې د زوال اسباب، لاملونه او وسایل ورته برابروي او یا یې پخپل ځواک پر توپانونو، سېلابونو، کانیو ورولو، غرقولو، زلزلو، اورلګېدلو او

داسي نورو عواملو، چې دملايکو په توګه نازليږي هلاکت ته رسوي. ګرګين، چې په ۱۷۰۲ع کال کښې دصفوي دولت له لوري په کندهار کې حکمران و، د ظلم د زوالبدني لامل يې ميرويس نيکه شو؛ ځکه، چې افغانانو تل خپله خپلواکي ساتلې او د سياسي اسارت له ژوندانه مرګ غوره ګڼي.

ميرويس نيکه دا زمينه مساعده کړه، چې ليکوالان يې د ژوند سياسي او تاريخي اړخونو ته پاملرنه وکړي او د پښتو ادب او فرهنګ پالونکي اديبان يې تر قلم لاندې خوندي کړي. همدا لامل دي، چې د ميرويس نيکه کارنامې ډېرو پوهانو، ليکوالانو، شاعرانو او حساسو تاريخ پوهانو او د سياسي او ملي شعور خاوندانو په پوره هاند او هڅې هغه څه ليکلي او روښانه کړي، چې تېر شوي دي.

لکه څنګه مو، چې يادونه کړې؛ ميرويس نيکه ډېر زړور او مدبر سړی و؛ سياسي او تاريخي خپلواکي پوهنې ترې اتل جوړ کړی و. کله، چې اصفهاني شاه حسين افغانستان د ايران يو ولايت وګاڼه؛ ګرګين يې کندهار ته حکمران وټاکه دکندهار غيرتي ولس يې له ببلا ببلو کړاوونو سره مخ کړ؛ نو ولسمشران اړ شول، چې لومړی د ده له لاسه شاه حسين صفوي ته خپلې اندېښنې په يو ګډ غوښتنليک کښې وړاندې کړي. دغه غوښتنليک له ټولو مخکې ميرويس نيکه او وريسې نورو مشرانو لاسليک کړ او مهرونه يې پرې ولګول. له دې وروسته ګرګين نور هم خپل ظلم او زور ته پاملرنه وکړه او دمشرانو په جلاکولو (فرارولو) يې پيل وکړ. حتا ميرويس نيکه يې جلا وطنه کړ او اصفهان ته يې واستاوه او دميرويس نيکه په برخه کښې يې داصفهان چارواکو ته پټ وليکل، چې: ميرويس خان دې په اصفهان کې پاتې شي، چې په کندهار کښې امنيت ښه شي. ميرويس خان په

اصفهان کښې د خپل ښه او پاخه تدبیر له مخې د صفویانو بې کفایتي درک کړه؛ لومړی له هر څه د مخه یې اجازه وغوښته، چې حج ته لاړ شي. هلته یې د حجاز له علماوو د جهاد کولو فتواګانې تر لاسه کړې او په مکه معظمه کښې یې له بېلابېلو ایرانیانو سره وکتل. کله، چې اصفهان ته راستون شو: نو د روسیې د پترکبیر سفیرورته وویل: ایرانیان پر ارمنستان د حملې اراده لري، چې هغه ونیسي او ګرګین ته د دې پرغلګر ځواک مشري ور په غاړه شوې ده. د غه راز یې ده ته د پټې مرستې ورکولو ډاډ هم ورکړ.

میرویس خان صفوي شاه حسین د ګرګین له ظلم، وحشت او نادودو څخه خبرکړ. خو په یو روایت یې هغه عزل کړ او پر ځای یې میرویس خان وټاکه او په بل روایت کښې یې ګرګین ته ولیکل، چې هر کار د میرویس خان په مشوره او مصلحت کوه.

په هر ډول ګه میرویس نیکه صفوي شاه حسین راضي کړ، چې دی یې کندهار ته بېرته واستاوه.

حاجي میرویس خان، چې په ۱۷۰۸ ع کال کښې کندهار ته ورسېد، ځان یې (وهبه الله) معرفي کړ او لویې جرګې ته یې قومي مشران راټول کړل او د ګرګین د وښتلو په باره کښې یې له جرګې سره مشوره پیل کړه. ټولو ورسره لوړه وکړه، چې کلک به ورسره دریږي او خپلواکي یې اړینه وګڼله. عجبه دا وه، چې ګرګین له میرویس نیکه څخه خوشګل نومې لور غوښتله او د ښېښې او خپلوۍ غوښتنه یې تري وکړه. میرویس هم یوه بله جلۍ، چې په کور کښې یې لویه شوې وه، ورکړه. هغه ګمان وکړ، چې دا د میرویس خان لور ده: نو خپل سلوک او خپله وضعه یې ور سره ډېره ښه کړه. له دغه حالته په ګټه اخیستنه میر ویس نیکه په یوه شپه کښې ګرګین او د هغه عسکر له منځه یوړل. میر

ویس نیکه پر ۱۷۰۹ع کال په کندهار کښې د پښتنو د خپلواک حکومت خپلواکي اعلان کړه.

میرویس نیکه پوهیده، چې په ختیځ او لویدیځ کې له مغلي هند او صفوي ایران سره په یو وخت مقابله نه شي کېدی؛ نو د هند مغلي پاچا او د ایران صفوي پاچا ته یې ببلا ببل لیکونه ولیکل. دده لیکنه دومره مدبرانه وه، چې دوه میاشتې یې ونیولې. چې هغوی پرې پوه شول او دځواب پرلیکلو اخته شول.

د هند مغلي پاچا ته یې لیکلي وه: څومره معاملې، چې مونږ یې له ایران سره لرو. له تاسو سره یې نه لرو. وجه دا ده، چې تاسې سني مذهبه یاست؛ نو. ځکه مونږ یو د بل په مرسته ښه ایسو.

صفوي دولت ته یې لیکلي وه: زه قوم وټاکلم او دا ښه شول، چې کوم تند افغان یې نه دی ټاکلی. که داسې شوي وه؛ ښایي تاسو ته به ډېره سخته شوې وای.

د ایران پاچا دوه تنه د نصیحت په نیت کندهار ته ولېږل، چې د صفوي پاچا له خوا میرویس نیکه ته نصیحت وکړي، خو میرویس نیکه هغه دواړه استازي په خپل دربار کښې بندیان وساتل. په دې توګه یې نور وخت هم ومونډ، چې په کښې خپلې لښکرې او جګړه ییزې چارې پرمخ بوځي او بیا یې داسې وخت ببرته وروستوي، چې د پاچا په دربار کښې وبره خوره کړي.

له دې لیکونو د تاریخي افغانستان د جوړولو اړتیا څرګندیږي، چې احمد شاه بابا هغو ته رښتینې بنه ورو بخښله کله. چې یو شمېر څېرو د تاریخي افغانستان د جوړېدلو اړتیا هېره کړه. افغانستان هم وران شو.

د میرویس نیکه پر هوښیارۍ. تاریخپوهنې او نبوغ د ښمنانو هم اعتراف کړی دی. مونږ باید د خپل دغه نیکه تاریخي- سیاسي

خوځښت خپل سرلاري کړو؛ ځکه، نو نن بیا اړ یو، چې ځانته خپل هېواد جوړ کړو. که په افغانستان کښې به خدای ناخواسته د تجزیې یا ملیتونو راپیدا شوې خبرې د هیچا په گټه نه وي.
چنگیزخان پښتانه وټکول. خو دوه گټې مو وکړې: یوه دا، چې لوی افغانستان مو جوړ کړ. دوه یم دا، چې ښه سیاسي – تاریخي رهبري میرویس نیکه او احمد شاه بابا راته پرېښې ده؛ ځکه، چې د دوی له برکته اوس هرڅوک، چې د افغانستان د خاورې وي، افغان دی. یعنې پرته له پښتنو نورقومونه هم افغان یادېږي. پر همدې مفهوم له ۱۷۴۷ع کال څخه تر ۱۸۰۰ع کال پورې له مشهد او نیشاپوره نیولې ان تر سر هند پورې ټول پراته ولسونه افغانان یادېدل. د دغه ملي او سیاسي مفهوم د ماتولو لپاره د پرو قدرتونو پرله پسې هاند و هڅې وکړې، چې لوی سیاسي افغانستان اوس ټوټه ټوټه ښکاري. خو فرهنگي او ملي مفهوم یې پخپله تاریخي بڼه په ځای پاتې دی.
تاجیک، هزاره، ازبک او حتا هندوان، چې په افغانستان کې دي، افغانان دي. د افغانستان ټول اوسیدونکي د امان الله خان په اساسي قانون کښې افغانان ومنل شول او په مساوي توگه له پوره حقوقو برخمن دي.
پښتنو خپل دولت د ملي اړتیا له مخې جوړ کړ او که نه پښتنو د مغلو د امپراتورۍ په جوړولو کښې پوره برخه درلوده او له بابر سره پښتانه مل ول. خو مغلي او پارسي واکمنیو ظلم، وحشت او فرهنگي نادودې پیل کړې او ځیني معلوم الحاله کورنیو او کړیو تر ډېره وژغورل، خو د پښتنو د صبر کاسه هم نسکوره شوې ده. ټول قومي، خو کورني مشران اړشول، چې پښتانه له خپلو متحدینو سره د ملي دولت د جوړېدلو هڅه وکړي، چې د یوه بشپړ ملي دولت پر جوړولو احمدشاه

بابا بريالى شو، خو د ١٩ پيړۍ په را پيلېدو دغه لوى هېواد، داروپا دصنعتي انقلاب او دهغه دسياسي او استعماري فعاليتونو په اندود وران شو، ډلي او معلوم الحاله كړۍ جوړې شوې وجه يې داوه، چې پر افغانانو داروپا تحولات په نسكوره بڼه كورنيو غليمانو وتپل او دغې تپنې ډېر عالمونه او د افغانستان خواخوږي تباه كړل.
دهند په مغولي امپراتورۍ كښې په زرګونو پښتانه منصبداران واليان او جاګير داران ول، چې هغه امپراتوري يې په پښو درولې وه. پښتانه په جوړولو خوښ دي، خو دې خبرې ته اهميت نه وركوي، چې دنظام په رهبرۍ كښې بايد پښتون وي.
كله، چې ميرويس خان په كندهار كښې د پښتانه خپلواكي اعلان كړه، صفوي دولت (خسرو) له شل زره لښكر سره كندهار ته راواستاوه، خو حاجي ميرويس خان نيكه له عسكرو او لښكرو سره ماته وركړه. ميرويس خان هغه لښكر ته هم ماتې وركړه، چې د رستم په نوم د صفويانو له خوا جګړې ته وراستول شوى و.
حاجي ميرويس خان پښتنو ته دپياوړي پښتني دولت بنسټ كېښود او زوى يې اعليحضرت شاه محمود هوتك د خپل پلار دسياسي كړنلارې پربنسټ ايران په پښتني فرهنګي پوله كښې راوست.
حاجي ميرويس خان په ١١٢٧ هـ كال كښې وفات شو او دكندهار دكوكران په سيمه كښې خاورو ته وسپارل شو (روح دې يې ښاد او ياد وي). اوس يې هم دزيارت ځاى د ليدلو وړ دى.
دده له مړينې وروسته يې ورور ميرعبدالعزيز ځاى ناستى شو، خو دكمزورې ارادې او تكل پر لامل ژر له مشرتابه ګوښه كړى شو او د حاجي ميرويس خان مشر زوى شاه محمود هوتك ته، چې غوره او پوه خان و، د دولت دچارو واګې وروسپارل شوې اود پلارنۍ سياسي

کړنلارې پر بنسټ پاچا وګڼل شو.
د میرویس خان د خپلواکۍ پوهنې بنسټیز اړخونه مو په لنډه توګه په دې څېړکي کښې یاد کړل؛ خو د یاد وړ یې بولم، چې د بېلابېلو سر لیکونو لاندې به بشپړ را مخې ته شي او په کښې به د میرویس خان د خپلواکۍ پوهنې تاریخي غوره او مدبرانه سیاسي کړنې څرګندې شي؛ ځکه، چې هره کړنه یې د اوسمهالې خپلواکۍ پوهنې مینه والو ته بنسټیز ارزښت لري او پر لوستلو به مو د سیاسي او هڅوبي مینې تنده هم ماته شي، ان شاالله

## د پښتنو هجرتونه دلوی افغانستان دجوړېدلو لامل دی:

په ۱۴۴۴ ع کال کښې اسلام خان لودي د سلطان بهلول لودي تره یو ولایت جوړ کړ، چې مرکز یې (ستت پور) نومول شوی و. د لودي د دې ځانګې حکومت تر ۱۷۰۰ ع کال پورې اوږد شو. د پنجاب په خوشاب کښې یو شمېر پښتانه په کرهڼه اخته ول، خو د پنجاب په ګرداس پور کښې ډېر پښتانه مېشته ول. د غه راز د امرتسر په بېلو بېلو برخو کښې پښتانه مېشته شوي وه. میانوالي کې پښتانه په یوولسمه عیسوي پېړۍ کښې مېشته شوي دي که څه هم سلطان محمد ولېږدول، خو ۱۵۰ کاله وروسته نیازي پښتانه بېرته په کښې ځای په ځای شول. ایسا خېل هم ورغلل.
د سلطان محمود غزنوي د سلطنت پر مهال ډېر پښتانه د هندوستان په ګوهاناجهجر کښې واوسېدل، چې زیات شمېر یې کاکازي او غوري وه. افغانان د سلطان سکندر لودي په وخت کښې لودیانې ته راغلل. د سلطان سکندر دوه جنرالان (محمد یوسف او نهنګ خان) د پښتنو پوره ملاتړ ته ولاړ ول.

په شپاړسمه پیړۍ کې پښتانه بنګال او بیهار ته رسېدلي وه.
په ۱۵۶۳ع کال کښې میرزا سلیمان کړیاني د بنګال او بیهار خپلواکي اعلان کړه او دی د بنګال او بیهار مشر شو. په دغه وخت کښې زیاتو پښتنو دلته هم استوګنه خوښه کړه.
په راجستان، جهاز پور، هندوون، اینډا، اجمیر، دنګان پور او په نور هند کې افغانان ځای په ځای شول.
د یادونې وړ ده، چې په ۱۴۸۴ع کال کې لودي سلطنت جوړ شوی دی.
داسې ښکاري، چې پښتانه پر ته له کومې موخې له خپلو غرنیو سیمو د هند لوري ته وخوځېدل، خو یو وخت د دوی پام شو. چې نور د هند پښتانه په هند کښې ورو ورو ډوب شول یعنې خپله ژبه او کولتور یې له لاسه ورکړ؛ نو. ځکه پښتانه هم پاتې نه شول او س ښایي په هند کښې د دوی شمېره له میلینو ډېره شوې وي.
پښتون لومړنی قوم دی، چې کولتوري او سیاسي غلامي یې نه ده کړې او خپل خپلواکه کولتوري ژوند یې ساتلی دی.
همدا لامل و، چې هوتکي میرویس خان نیکه او احمد شاه بابا د کندهار مرکزیت ټینګ کړ.
هوتکي میرویس نیکه او دراني احمد شاه بابا پښتنو ته ملي لومړیتوبونه وټاکل او د تاریخ ملي فلسفه یې روښانه او د ډاډ وړ کړه، چې نن یې پر اغېز د پښتنو په مشرۍ د بېلا بېلو قومونو د یو والي ولولې راپارولې. د دغه اغېز پر تاریخي او معنوي جبر په افغانستان، ایران او هندوستان کښې مېشت پښتانه او نور قومونه له فکري او عملي یووالي برخمن ول.
په ایران کښې عربو، زردشتیانو، کردانو، ارمنیانو، سني مذهبو بلوځو؛ په هند کښې مسلمانانو په شمال کښې تاجیکو، ازبکو،

ترکمنو او نورو په افغان لښکرو او اداره کښې برخه درلوده، چې افغان نظامونه یا دولتونه ترې جوړ شوي ؛ ددې خبرې سپړنه او څرګندونه اوس ګرانه شوې، چې پښتانه بې تعصبه خلک دي.
داصولو منل، مېړانه او ځوانمردي هغه تاریخي ارزښتونه دي، چې هوتکي میرویس خان خوندي کړل او احمدشاه بابا وده ورکړه. ددوی په واکمنیو کښې هر چا دامن، قناعت او عدالت درناوی کاوه؛ ځکه، چې تاریخي بهیر په کښې خوندي شوی و. د تاریخ مادي پوهنه (کمونستي او ډیموکراسي) د شر او فساد په بڼه د تاریخ له معنوي پوهنې بېله ګڼل شوې وه.
پښتنو په خپلو سیمو کښې تل کولتوري پناه اخیستونکي له دښمنانو ساتلي او هڅولي او دا تاټوبی تل د امن او پناه ځای ګڼل شوی دی. پښتانه نه یوازې د ظلم او ناروا مخې ته راپاڅېدلي او درېدلي، بلکې د مظلوم د ملاتړ او مدافعې لپاره یې د نیاو، عدل او انصاف په نوم سربښندنه هم کړې ده.
دوی د یوه مظلوم د ساتلو لپاره لس تنه قربان کړي، خو د خپل تاریخي شتون روان بهیر یې هم ساتلی دی؛ ځکه، نو د لوی افغانستان تاریخي او فرهنګي بنسټ (خپلونه، ژغورنه او هڅونه) ټولو ته د یو اصل په توګه د درناوي وړ پاتې شوی دی.

## دګرګین پېژندنه:

دګرګین نوم (ختنک) دی. دی په ختنه مسیحي ګرجی او دګرجستان نوی مسلمان شوی او سیدونکی و. په ګرجستان کښې د پارس له پاچا یاغی شوی و؛ خو په پای کښې ونیول شو، چې د اسلام دین یې ومانه سلطان حسین وبخښلو او د(شهنواز خان) لقب یې ورکړ. دی پوره

عصبي او ظالم سړی و؛ ځکه يې کندهار ته له شل زره لښکر او گرجستاني جگړمارانو سره ولېږلو. کله، چې پښتانه د دوی له ظلمونو تنگ شول؛ نو خپل ملي مشر ميرويس خان ته يې يو شمېر اند ښنې ښرگندې کړې. ميرويس خان نيکه هم له دوی سره خپلې اند ښنې گډې کړې او د ملي خپلواکۍ پوهنې بېلا بېل اړخونه يې له سوداگريزو چارو سره د پلي کولو وړ وگڼلې. ده په پوره تدبير ځان گرگين ته دوست وښود؛ هغه هم صميمي دوستوگانه او هر کار يې د ده په مشوره کاوه.

ميرويس خان نيکه په دغه ځانگړي وخت کښې د ځانگړې شېبې د لاسته راوړلو په لټه کښې و، چې رامنځته شوې فتنه ويده يا مړه کړي. په پای کښې يې د گرگين پر ظلمونو يو گډ نوښتگر غوښتنليک اصفهان ته ولېږلو. پر دغه غوښتنليک تر ټولو لومړی ميرويس خان لاسليک کړی و او ور سره لېږل شوي پلاوي ته د اصفهان په دربار کښې په ډېر زحمت د غوښتنليک وړاندې کولو فرصت په لاس ورغلی و، خو د دربار له خوا رد او په شدت ځواب شو او لېږل شوی پلاوی بېرته کندهار ته راغی. د پلاوي له را تگ سره نوره هم په خلکو کښې د اصفهان له درباره کرکه ډېره شوه او ترمنځ يې د يووالي ولولې راوپارېدلې.

گرگين له خبرېدنې سره سم ميرويس خان نيکه د پادشاه دښمن ونوساوه او له خپلو ملگرو سره يې ترخارنې لاندې اصفهان ته ولېږه، خو دی يې په ښکاره داسې ولېږه، چې: گويا پادشاه غوښتی. گرگين په دې خبره قسم ورته هم وکړ. په داسې حال کښې، چې پټ يې د بندي کولو مکتوب ورسره داسې استولی و، چې: ميرويس خان په پلازمېنه اصفهان کښې وساتي او دی به په کندهار کښې امن راولي.

میرویس خان، چې اصفهان ته ورسېد، بندي شو، خو ده هلته له خپل تدبیر څخه کار واخیست د کابینې غړیو ته یې پیغام ولېږه، چې د یوې ګړۍ لپاره د لیدنې اجازه وکړي. هغو میرویس خان نیکه وغوښت لومړی یې اعتمادالدوله سره وکتل هغه ته یې د هندي قیمتي ډالیو او تحفو د ورکړې وعده ورکړه بیا یې نور اراکین ولیدل او هر یوه ته یې ډالۍ ورکړې. په همدې ورځو کښې یې دیوان بېګي هم ولید د ده سر یې هم د قیمتي ډالیو پر ورکړه ځانته تیټ کړ.

میرویس خان پوهېده، چې تحفې او ډالۍ څومره ور کارکوي؛ نو د ملي خپلواکۍ لپاره یې د خپلې ځانګړې شتمنۍ له لګولو کار واخیست. بله ورځ خبر شو، چې د کورنیو چارو او قضایاوو د حل لپاره یو لوی مجلس جوړېږي؛ ده زیار وویست، چې په دغه مجلس کښې ګډون وکړي. کله، چې مجلس جوړ شو، مجلس ته دی هم وبلل شو. د مجلس رییس د ګرګین په اړه له میرویس نیکه وپوښتل. ده په ځواب کښې د ګرګین ستاینه وکړه؛ ځکه، چې د هغوی رایه ځانته معلومه کړي. میرویس نیکه ګرګین ورور وباله او ویې ویل، چې د مغلو یرغل ما ترې دفع کړ... په دې وخت کښې دیوان بېګي، چې د ګرګین طرفدار و؛ په قهر شو او ګرګین ته یې په بد رد ویلو پیل وکړ. ده وویل ولې ګرګین نه پوهېږي، چې میرویس خان د ده دوست، حقیقي معاون او ملګری دی؟

د دې ورځې مجلس تېر شو او د میرویس فصاحت او بلاغت دوی په حیرت کښې واچول. دیوان بېګي ګرګین ته ولیکل: (تو لیاقت جمع اوري یکصد هزار تومان را نداري).

بله ورځ میرویس خان خبر شو، چې د اعتمادالدوله په کور کښې مجلس جوړېږي؛ نو ځان یې ورورساوه؛ له نورو سره یې د لاس روغبړ

وکړ، خو د سيل کوونکيو او اوريدونکيو په ډله کښي کښېناست.
يعني له دې ځرګنده شوه، چې ميرويس خان نيکه کولی شول د اعتماد الدوله په اجازه هر ځای ته ولاړ شي.
په مجلس کښې له ناستې وروسته صدراعظم پر ميرويس خان نيکه ورغږ کړ، چې: ستا په اړه له کندهاره يو مکتوب راغلی؛ زه تاسې پخپله د دې قابل بولم او غوښتنه کوم، چې پخپله د حقيقت له مخې هغه څه ووايئ، چې ليدلي مودي.
ميرويس خان ډېر ژر وپوهېده، چې کابينه يې د اختلافاتو ښکار شوې او بېلا بېل اړخونه په کښې هلې ځلې کوي په دې وخت کښې اعتمادالدوله د ميرويس خان په پلوئ ورودانګل او ويې ويل: د ګرګين له ظلمونو، چې پر تا يې کړي په نظر کښې مه نيسئ، ته اصل حقيقت ووايه؟

**په اصفهان کښې د ميرويس خان نيکه خبرې او د حج تکل:**

ميرويس خان نيکه هم فکر وکړ، چې په دې ځای کښې څه غوره دي، چې وويل شي. خو اصل حقيقت يې داسې پيل کړ:
تاسې د حقيقت پوښتنه وکړه؛ زه هم پښتون يم بايد حقيقت ووايم. که ګرګين نور هم په کندهار کښې پاتې شي؛ د کندهار وضعيت به ډېر وران شي. د کندهار حکومت اندامونه به داسې بېل شي، چې بيا به يې يو ځای کول ګران کار وي؛ ځکه، چې ګرګين تراوسه پورې د خپلو عسکرو په اداره کښې هم ځواک نه لري، چې د حيا او عفت تر قانون لاندې يې راولي.
هغو کسانو. چې څه سر يې هم پرې نه و ښورولی: مالونه يې لوټ او اولادونه يې له عسکرو سره ګرجستان ته ولېږل شول خلکو هڅې وکړي. چې ياغيان شي. خو ما پرې ښودل؛ نو ښه! کوم وخت، چې

ډېرې روپۍ او د لوټ مال سره یوځای کړي او ډېر عسکر هم ولري؛ آیا دا خطره نه شته، چې د هند له حکومت سره به موافقه وکړي؟
کوم شی به وي، چې ګرګین له دې موافقې وګرځوي؟
ولې پاچا د ګرګین پر ځای له خپلې کابینې یو لایق او تجربه کار وزیر، چې له خپل دین، مذهب او ملت څخه یې وي، د سلطنتي کارونو د سرته رسولو لپاره غوره نه کړي؟
تر لمر سپینه ده، چې یو وخت به دا پست فطرته سړی داسې موقع پیدا کړي، چې د سلطنت د ورانۍ او خرابۍ اسباب او علل راغونډ کړي...))
د میرویس دا وینا ټول مجلس په دقت واورېدله د دیوان بیګي ډله، چې د ګرګین پلوې وه، د ده له دې وینا خواشیني شوه او هغه بله ډله، چې د ګرګین پلوې نه وه، ډېره خوشحاله شوه او له میرویس نیکه سره یې ومنله، چې د مقابلې پالنې په مقابل کښې به یې تقویه او محافظه کړي.
میرویس نیکه همدا خبره له خدایه غوښته له دې وروسته میرویس نیکه په پوره مېړانه د خپلو وروستیو هلو ځلو زړي وکرل او په هرځای کښې یې درناوی کېده. په ځانګړي توګه د اعتماد الدوله ډلې د ده ډېر احترام کاوه او دې ډلې نه یوازې د میرویس شفاعت پاچا ته وکړ، بلکې د ګرګین ظلمونه او وحشت یې هم ورته ښکاره کړ. دغه راز دې ډلې د فارس پاچا له میرویس نیکه خوښ او راضي کړ، چې په پای کښې پاچا هم میرویس له قیده معاف کړ.
میرویس کولی شول، چې پرته له ځنډه کندهار ته راستون شي. خو د خپل مدبرانه پرېکړې له مخې یې په پوره پاملرنه ګامونه پورته کول؛ د خپلواکۍ او د هېواد د بد حالت په خیالونو کښې یې خپل چاپېریال

ځارلو؛ نو، ځکه پاچا د ده بې ګناهي اعلان کړه او په دربار کې يې له پرېکړې ملاتړ مخ په ډېرېدو شو. ميرويس نيکه څه موده وروسته د بيت الله شريف د زيارت او حج کولو اجازه وغوښته او لاندې لاملونه يې ورته وړاندې کړل:

يو، خو د دنيا له شتمنيو او تکاليفو ستړی شوی يم؛ بل دا، چې ډېر ناروغه يم؛ نو هيله من يم، چې نه يوازې د مقدسو ځايونو او ښارونو زيارت وکړم او د ژوند څو شېبې او ورځې په عزت تېرې کړم، بلکې غواړم د خدای لوی او پاک دربار هلته ووينم، د مکې او مدينې په زيارت مشرف شم او له هغه وروسته په رياضت او دعا بوخت شم که اعليحضرت اجازه راکړي دحج له ادا کولو وروسته به بېرته دلته راځم او خپله ټوله کورنۍ به له کندهاره اصفهان ته راولم او دلته به ژوند کوم.

هو! که ستاسې خوښه وي؛ خپله ټوله قبيله او خپلوان راغواړم او امر صادر کړئ، چې راشي.

سلطان حسين په ښکاره د مذهبي مراسمو پوره پابند و؛ نو، ځکه بريالی نه شو، چې د ميرويس دا عزم فسخه کړي، خو د ميرويس نيکه له خبرو هم ډېر خوشحاله شو؛ نو ويې ويل:

((هيڅوک دې په ميرويس غرض نه لري او نه دې څوک دی له دې لوی عزم څخه راګرځوي)).

ميرويس له خپلو ملګرو سره مکې او مدينې ته لاړ: د دواړو سيمو له علماوو او مخورو سره يې وکتل او تحفې يې ورکړې.

په مدينه کښې يې دا مناجات وړاندې کړل:

ولاړ د شپې يې په يثرب کا فرياد
رسول د خدای ته چې شو قوم مې برباد

ستا په امت راغی د ظلم دوران
واوره رسولِ الله ددې قوم فغان
پښتون خو ستا پر نامه ځان کړ فدا
ای خیر الناسه واوره ته یې ندا
وژغوره دوی ته د ظالم له لاسه
گرگین له منځه د پښتون وباسه
ستا په نامه به دي کلمه گویه پښتون
نه به شي هیڅکله له تا نه راستون
مرگ او ژوندون مو د اسلام لپاره
ستا د دربار ستا د سلام لپاره
مه مو کړه هېر خیرالورا رسوله
فخر کونین نورالهدا رسوله
اوښکې مې ځاځي په دربار یم ولاړ
قوم مو په اور د ظلم ټول لتاړ
یو نظر وکړه پر موږ چې شو، وړ
و ظالمانو ته تر څو به یو پړ
ستا لطف او مهر دی شامل په جهان
هر خراب زړه دی ستا په مهر ودان
که ستا نظر نه وي خراب شو پښتون
په اور د ظلم نور کباب [illegible] ښتون
راغلم له لیرې ستا د [illegible] نبي
نه مې شفیع شه خدای ته [illegible]ار ته نبي
چې پر پښتون قوم نازل که رحمت
کړي یې خوندي ناموس پخپل مرحمت

لاس د ظالم یې له ګریوان کړه لنډ
وچ شي د ظلم د ګنډ و خیر ډنډ
ستا شریعت شي ټینګ په منځ د پښتون
ورک شي بې داد او کم شي رنځ د پښتون
دامې دی سوال ولاړ و در ته یمه
محتاج دې تش و لږ نظر ته یمه
د قوم حال کړم در ته عرض په ادب
ته یې بادار د کل عجم او عرب
بې لتانه لری پښتون خوا له ګر
ته یې ملهم د خوږو زړو د پرهر
وژغوره زمونږ نام او ناموس له بېداد
کړو بې ناموسو ظالمانو برباد
سر کړه راپورته زمونږ حال و ګوره
د ظالم ظلم بد احوال و ګوره
نه یې له تا شرم او حیا شته نبي
نه شرم کاندي له عیسي ارمني
عرض مې د حال وکه وتا ته پیشوا
بل څوک مو نشته خواله ګر په دنیا

میرویس نیکه له مناجات وروسته خوب ولید . چې حضرت صدیق (رض) او حضرت عمر فارق رض میرویس ته داسې وایي:

وې ای سپین ږیریه ! نور څه غم مه کوه
قوم دې خلاص شو کورټ ماتم مه کوه
ولاړ شه خیل قوم ته دا زیری کړه ژر
چې د ظالم شو کم نقصان او ضرر

پښتون به خدای که له ظالمه آزاد
ته به شي ننګه او ناموس یې برباد
خدای به دا قوم که په رحم ودان
نوم به یې وینه مجاهد پر جهان
تل به د خدای په بندګۍ کې وي لوړ
څوک به یې نه کا سر په ټیټه ور څوړ
کلمه د خدای به وي جاري په افواه
ورکوی دوی به په دې لاره کې ساه
څو یې طره وي د اسلام په پګړۍ
نه به شي ورک نوم د دې قوم له نړۍ

## دحجاز له علماوو فتوی غوښتل:

کله، چې له مدینې بېرته مکې ته لاړ علما یې راوغوښتل او د زړه راز یې داسې ورته بیان کړ:

((مونږ د دوه مملکتونو ترمنځ واقع شوي یو، چې یوه خوا د هند مغلي امپراتوري او بل خوا د پارس صفوي مملکت دی.

مونږ د محمد(ص) په دین یو او په دوه قبیلو سره وېشل شوي یو، خو له څه وخت راهیسې زمونږ مملکت ته رافضیان او شیعه ګان راغلي دي او د دوی له لاسه ډېر غیر قابل زغم او نه زغمېدونکي ظلمونه وینو. اوس یې د ګرګین په نامه یو رافضي بېګلرګی، چې ډېر ظالم دی. زمونږ پر سر درولی دی، چې د قانون او عدالت خلاف پر مونږ او زمونږ پر کورنیو ظلمونه کوي په داسې حال کښې ای بزرګواره او لویو عالمانو! آیا مونږ حق نه لرو، چې د خپل دین. ناموس او خپلواکۍ لپاره تورې له تیکو راوباسو؟

که مونږ د دوی په مقابل کښې د خدای (ج) د رضا لپاره د جنګ اعلان وکړو او دوی مات کړو آیا د دوی مالونه مونږ ته ځنګه دي؟ د دغه سوال په مقابل کښې یې کافي ځواب وموند؛ ځکه، نو میرویس خان نیکه بېرته اصفهان ته را وګرځېد.

## له حجاز څخه اصفهان ته د مېرویس خان نیکه راستنېدل:

له ده سره د پارس د صفوي حکومت پر خلاف د حجاز له علماوو او روحانینو ډېرې مهمې فتواوې په لاس کښې وې. دغه راز یې له ځان سره ډېر خوشبو شیان او عنبر راوړي وه، چې د نفوذ او رسوخ خاوندانو ته یې وړاندې کړل او لیدنه یې ورسره تر سره شوه. میرویس خان نیکه د هغو په زړونو کښې پوره ځای او اغېز رامنځته او نورو ډېرو دی پاچاته ورنژدې کړ. د ده ژور فکر او عقل یې وستایه او په سلطنتي چارو کښې یې لاره ورکړه، خو ده په سلطنتي چارو کښې ډېره مداخله غوره نه کړه او کندهار ته یې د تلو تلوار هم نه کاوه؛ ځکه، چې نه یوازې یې د خپلو پلانونو پلي کول غوښتل، بلکې غوښتل یې، چې، د څه وخت لپاره نور هم په اصفهان کښې پاتې شي.

## د میرویس خان نیکه د پلانونو د استحکام لپاره یو تصادف:

میرویس خان، چې له مکې معظمې څخه اصفهان ته راغی؛ نو د ده د پلانونو د استحکام لپاره یو تصادف پېښ شو، په دې وخت کښې د روس (پترکبیر) له خوا اصفهان ته یو سفیر راغی. دا سړی (اسرائیل اري) نومېده، چې په اصل کښې ارمني او د پارس د (قاپاتلوی) و. دې سړي له دې مخکې، چې سفیر شي، په فرانسه، ایتالیا او المان کښې یې د قهوې خرڅولو په نامه سیاحت کړی و او بیا ذ لومړي

(لويولډ) د المان دامپراتور په عسکرو کښي دا خل شو. وروسته په کښي د يو ټيټ منصب لرونکي هم شو. دی. چې يو د سيسه خوښوونکی سړی و؛ نو د (اطريش) دوزيرانو په دربار کښي يې لاره وموند له نوموړي د ختيځ د برې ژبې زده کړې وې؛ نو مامورشو، چې استامبول ته لاړشي او پوهيږي، چې عثماني حکومت له هغې روغې سره موافقه لري اوکه نه. چې اطريش او د هغه متحدينو (المان او لهستان) وړاندې کړې وه. بيا (اسرائيل اري) د روس د قيصر خدمت ته راغی او د هغه په عسکرو کښي د منصب لرونکی شو، چې د روس لپاره يې په عثماني دولت کښي خورا ډېر خدمتونه کړي او د خپلو خدمتونو د مکافاتو په بدل کښي يې د روسيې له پتر کبيره وغوښتل، چې پارس ته يې په سفارت واستوي. امپراتور سربېره پر دې، چې د ده دا غوښتنه يې ومنله، دا پرېکړه يې هم وکړه: د ده او د ده د ملګرو خومره مالونه، چې د تجارت لپاره يې وړي، د ګمرک له محصوله معاف دي.

اسرائيل اري مخکې له دې، چې اصفهان ته لاړ شي. اطريش ته لاړ او د هغه ځای له امپراتوره يې د سلطان حسين په نامه د سپارښتنې ليکونه واخستل. بيا روم ته لاړ له پاپه يې هم د پاچا په نامه له ځان سره ليکونه ولېږدول. بيا يو شمېر ارمنيانو او روسانو د پارس (شماخي) ته وروستو. د پارس وزيرانو يو سړی ورواستاوه، چې شهرت يې واخلي. دوی دا خبر راوړ، چې دا سفير ارمني دی او ځان يې دارمنيانو شاهزاده ښودلی دی. د اصفهان وزيرانو نه غوښتل، چې يو ارمنی سړی د روس په استازيتوب اصفهان ته ورشي؛ ځکه د ده اړيکې او نژديوالی له پتر کبير سره څرګند نه و، نو په دې برخه کښي يې د فرانسې له سفير (مليشتل) څخه مشوره وغوښته.

د فرانسې سفير، چې د اسرائيل اړي په راتګ خوښ نه و (ځکه، چې دې سفير د لويولټ باورليک په لاس کښې لره، چې له فرانسويانو سره په جنګ اخته و او هم يې اوربدلي وه، چې: اسرائيل اړي غواړي د اسې اسناد تر لاسه کړي، چې کاتوليکي کشيشان له پارسه وشړل شي) نو ويې ويل: ربښتيا هم دا سفير ارمني دی، چې تر دې دمخه يې په فرانسوي عسکرو کښې کار کاوه او د فرانسې په عسکرو کښې پوځي منصب هم ور په برخه شوی و. نوموړی څو ځله جرمني ته تلی او دلويولټ ځانګړی ژباړن و. بيا په روسي خدمت کښې شامل شو او د سروانۍ په دنده وټاکل شو. دغه راز د جرمني شهزاده دی د روس (تزار) ته ور پېژندلی دی. دا دی، چې اوس د اصفهان دربار ته د سفير په توګه راستول شوی او په کتاب کښې هم اټکل شوی، چې يو ارمني به په اصفهان کښې پاچاهي کوي؛ هغه به همدا وي.

ميرويس خان ته دې تصادف زمينه مساعده کړه، چې ګرګين ارمنی دی؛ هغه به له دې سفير سره په کارونو کښې پوره همکاري وي، خو پاچاهي نه ورسيږي.

د فرانسې د سفير خبرو صفوي پاچا اغېزمن کړ او وزيرانو د ميرويس خان نيکه د نظر څرګندولو غوښتنه وکړه. د روسيې د سفير په اړه وزيران هم درې ډلې وې: يوه مخالفه بله موافقه او دريمه ممتنعه وه. هغه هم له فرصته کار واخست او ويې ويل:

زما په عقيده د دې سړي راتګ سياسي رنګ لري او پر همدې لامل نوموړی دې خاورې ته را ننوځي، خو ستاسې د ځواک تر شعاع لاندې راتلای شي او د دې واک او ځواک به و نه مومي، چې کومه فتنه او شخړه جوړه کړي. که تاسې د کومې شخړې انتظار له ده څخه لرئ؛

نو پرېږدئ، چې اقدام وکړي بيا تاسې کولای شئ، چې دی محبس ته ولېږئ که ده کوم داسې اقدام ونه کړ؛ نو له څه مودې وروسته، چې وخت يې پوره شو ببرته يې (زار) ته ورواستوئ په دې توګه به د ده نه يوازې لوی توهين شوی وي، بلکې دا به هم ورته وويل شي، چې د باغيانو د راپاڅولو او وربلولو لپاره مو دی دې ځای ته راستولی دی؛ نو هغه به ناکام لاړ شي.

سربېره پر دې له دې هم وېره شته که دی په دربار کښې قبول نه کړای شي؛ احتمال لري، چې د ګرګين د ورور په شان ځان د روسيې قونصلګرۍ ته ورسوي او د ارمنيانو د سرکښۍ او طغيان باعث شي.

هغه وخت به د ګرګين د هنګامې په شان يوه بله هنګامه هم توده وويني، ډېرې وينې به توې شي او زياتې پيسې به مو ولګيږي؛ نو له هر څه وړاندې لازمه ده، چې خپلو سرحداتو ته توجه وشي. وګورئ، چې له يوې خوا ګرجي شهزادګانو ته د روس له قيصره د مرستې او ساتنې غوښتنه کيږي او نظر علي خان د ګرګين د اکا زوی او د ګرجستان والي يې د روسيې دربار ته استولی دی او له بلې خوا پوهيږئ، چې ګرګين ارمن تبره دی او دا هم څه لېرې نه ده. چې روسي خواخوږي هم پيدا کړي.

ګرګين فرصت لټوي، چې سرکښ شي (لکه د مخه يې، چې اقدام په ناکامۍ پای ته ورسيده) نو اړينه ده، چې هغوی به د خپلې مرستې لپاره راوغواړي په دې اړه به د خپلو نورو ګاونډيانو مرستې وکاروي او يا به خپل حکومت د هند پاچا ته تسليم کړي او له هغو سره به تړون وکړي، چې له ده سره مرسته وکړي.

دا هم څه لېرې نه ښکاري، چې يو شمېر پښتانه وکاروي يعنې هغوی به خپله ډله کښې راننباسي؛ ځکه زه هلته حاضر وم او د ده کارونه مې

لیدلي دي، خو گرگین له ماځخه کوم مخالفت ونه لید او نه ما کوم ظلم کړی و. سره له دې هم زما وجود یې هلته نه غوښته او زه یې له هغه ځایه لیرې کړم ځو دی په خپل مقصد کښې کامیاب شي. که زه هلته وای او د پښتنو په منځ کښې کومه واقعه پېښه شوې وای ما کولای شول په آسانۍ هغه اور مړ کړم.

په هره توگه که دا سفیر ومنل شي؛ نو لږ تر لږه به د راتلونکي په فکر کښې اوسئ او د ده په کاراو بار پسې څارو اوسئ.

میرویس خان نیکه په پای کښې دا هم وویل، چې: په رښتیا هم د برنازک وخت دی. که پترکبیر د روغې او دوستۍ له مخې سفیر رالیږلای، دا اوسنی سړی به یې نه رالیږه. په تېره بیا داسې سړی، چې د ارمنیانو د شهزادگانو دعوې کوي. اړینه ده، چې ټول گرجیان او ارمنیان تر نظارت لاندې وي؛ ځکه، چې گرجیانو د گرگین تر مشرۍ لاندې بغاوت کړی و. اوس هم، چې د گرگین د اکا زوی په دربار کښې لوړ مقام لري آیا د دې سفیر راتگ به د گرجیانو او ارمنیانو په روحیاتو کښې په ځانگړې توگه د گرگین پر روحیاتو څه نا څه اغېز را منځته نه کړي.

پادشاه د روسیې د سفیر اسراییل اري ښه راغلاست وکړ او اصفهان ته ورغلو. د گرگین لپاره یې داسې چاره وسنجوله. چې هم معزول نه شي او هم له ځواکه ولوېږي هغه داسې، چې: میرویس خان یې کندهار ته واستاوه او د ښاروالۍ (بلدیې) ریاست یې ورکړ. چې د گرگین مراقب اوسي. که موقع یې پیدا کړه، چې د ده ځای هم ونیسي (دا و د یو پښتون فکر. چې تحت الحفظ استول شوی و او د یوې کابینې له خوا بېرته په ریـ ست راغی).

## کندهار ته د میرویس خان نیکه بېرته راتګ:
## (۱۱۲۰ه.ق – ۱۷۰۸ع)

میرویس خان کندهار ته څو لیکونه هم له ځان سره پر ګرګین راوړل، چې له ګرګینه غوښتل شوي وه، چې د ده له مشورې پرته به کار نه کوي، بېرته به پخواني منصب ورسپاري او احترام به یې هم کوي. حتا اعتمادالدوله میرویس خان ته په ځانګړي توګه ویلي وه، چې: د ګرګین پسې دې څارو وي. دغه راز یې مهر کړی سند هم ورکړی و، چې که اړتیا پېښه شي، هغه دې هم وکاروي.

دیوان بېګي هم څو مکتوبونه ورکړي وه؛ هغه لیکلي وه، چې: میرویس یو له هغو هوښیارو خلکو څخه دی، چې له پاچا سره یې ډېر کومکونه کړي دي.

په کندهار کښې د میرویس خان تود هرکلی وشو. ګرګین هم په ظاهره د ده هرکلی وکړ، خو زړه یې ورته له وینو ډک و او د انتقام لاره یې لټوله په تېره بیا، چې د اصفهان د دربار له ګواښ او سپارښتنې ډک لیکونه یې ولوستل.

میرویس د ګرګین په اجازه خپل کور ته لاړ؛ ډېر کشران او مشران یې هر کلي ته ورغلل او ډلې ډلې خلک د حج مبارکي لپاره ورتلل، چې میرویس خان نیکه د ژغورنې او خپلواکۍ لپاره څه زیری راوړی دی.

ګرګین؛ څکه د غچ اخستنې په لټه کښې شو، چې په پلاز مېنه کښې یې هم درباریانو لېږل شوي لیک ته پاملرنه ورنه کړه؛ نو د هغه د سپکاوي لپاره یې داسې یوه پلمه جوړه کړه، چې: میرویس ته یې خبر ورکړ، چې خپله خوشګل نومې لور دې د ګرګین زوی ته په نکاح ورولېږي.

میرویس خان نیکه نه یوازې دا بلنه خپل سپکاوی وباله، بلکې د قوم مشران یې راوغوښتل؛ ملي جرګه یې جوړه کړه او دا اند ښنه یې هم ورووړاندې کړه.

## لومړی ملي جرګه:

میرویس خان نیکه ګرګین ته له منفي یا مثبت ځواب ورکولو څخه غوره وګڼله، چې په کوکران کښې پرې ملي جرګه راجوړه کړي. جرګې پرېکړه وکړه، چې میرویس خان نیکه دې لور نه ورلیږي او قسم یې وکړ، چې د ده په مرسته کښې به د پت. خپلواکۍ او دین په لاره کښې له سر او ماله تېرېږي. میرویس خان نیکه خوښ شو او ویې ویل:
غوره داده، چې بلا پر خوب ویده مړه کړو. ټول پخپله پرېکړه ټینګ شئ او دا راز چاته مه وایئ او پرما ډاډمن اوسئ، چې له ښمنانو به غچ اخلو؛ نو د رحمن بابا د دیوان یې فال ونیو او لاندې بیت مخې ته ورغلو:

زه مکتوب غوندی په پټه خوله ګویایم
خاموشي زما تېری کا تر غوغا زما
کښت د عشق په توده ځمکه اسان نه دی
سمندر بویه چې زیست کا په صحرا زما

میرویس خان نیکه وویل: د ظالمانو کار پای ته رسېدلی دی. اوس خاموشي بهتره ده؛ په مناسب وخت کښې به په تاسې ږغ وکړم. هغه وخت باید ټول تیار یو او ظالمان به له وطنه وباسو.
دوی پرېکړه وکړه، چې: دښمن به له وطنه ورک کړو او د ګرګین د تېروتلو لپاره میرویس خان نیکه یوه بلنه نجلۍ، چې د ده په کور کښې لویه شوې وه، د خپلې لور په نامه ګرګین ته ورولېږله. داسې یې

وبربښوله، چې ګویا دا د میرویس خان لور خوشګله ده.
ګرګین یې ولیده او موافقه یې ورسره وکړه او هغه هم خپلې کړنې ور سره نرمې کړې. میرویس خان نیکه له بېلا بېلو قومي مشرانو سره په قرآن، توره، مالګه، او ډوډۍ ژمنه وکړه او ویې ویل، چې څوک له دې پرېکړې اوړي، هغه به (زن طلاق) وي.
هغه نجلۍ، چې د ګرګین کورته ورغله؛ د ګرګین له زړه کینه وو تله، په هر شي کښې یې ' )میرویس خان نیکه مشوره غوښتله او د ده زړه یې ساته میرویس خان نیکه هم زیار ویسته، چې: ګرګین ته داسې ځان وښیي، چې د هغه ټول ظلمونه او نادودې یې هېرې شوي؛ نو د خپلوۍ له مخې یې ځان بیخي د ګرګین اعتمادي کړاو یوه میاشت وروسته یې د ګرګین د را پرځولو لپاره دوه یمه لویه جرګه جوړه کړه.

## دوه یمه ملي جرګه :

یوه میاشت وروسته، چې د ګرګین ظلمونه زور شول؛ پښتنو د کوکران له لویې جرګې وروسته په مانجه کښې ملي جرګه جوړه کړه او له میرویس خان نیکه څخه یې وغوښتل، چې دوی وژغوري او هېواد یې خپلواکه کړي: نو دیووالي او مرستې ژمنه ورسره وشوه. میرویس خان نیکه هم د اصفهان مکتوبونه دوی ته وروښودل. چې صفوي حکومت هم له ګرګینه ناراضه دی او پر له منځه وړو یې نه خفه کیږي میرویس خان نیکه خپل ژور. خو د ډاډ وړ پلان دوی ته څرګند کړ، چې د ټولو خوښ شو او د جرګې هر غړي ته دنده وسپارل شوه.
د دې جرګې غړي دا ول:
۱- سیدال خان ناسر
۲ -بابو جان بابی

۳ - بهادرخان

۴ - میاجي (پیر محمد )

۵ - یوسف خان هوتک

۶- عزیز خان

۷- گل خان بابړ

۸- نورخان بړیڅ

۹ -نصروخان الکوزی

۱۰-یحي خان دمیرویس خان نیکه وروړ

۱۱-محمد خان دمیرویس خان وراره.

۱۲- یونس خان کاکړ او نور ملکان او مشران....

د جرگې په پای کښې بیا میرویس خان درحمن بابا پر دیوان فال ونیوه، چې لاندې بیتونه یې ولیدل:

چې اسمان یې مخ پټ کړی په سحاب و
خدای وما وته ښکاره کړ هغه نمر بیا
چې رقیب راته تړلې په ځنځیر و
خپل حبیب راباندې پرانست هغه وربیا

د دې ورځې اسمان هم وریځ و. میرویس خان نیکه، چې دا بیتونه ولوستل لمررا ښکاره شو، خلکو یو الهي مدد وگانه؛ نو میرویس خان وویل: دا دی دخدای مهر او لطف هم زمونږ ملگری دی. اوس؛ نو وخت دی، چې توري له تیکیو راوکاږو او ځانونه له دښمنه وژغورو.

## د میرویس لومړی اقدام:

د بلوڅو او کاکړو مشران، چې خپلو سیمو ته ورسیدل ؛ نو خپل قومي ځواکونه یې راوغوښتل او گرگین ته یې دمالیې له ورکولو څخه ډډه

خپره کړه. ګرګین خپل ګرجستاني لښکر ورواستاوه، خو میرویس خان ګرګین ته ورغی، د بلوڅو او کاکړو په دې بغاوت یې ور سره خواشیني څرګنده کړه او ده ته یې بلنه ورکړه، چې په مېلمستیا کښې به دوه تنه تکړه سرتېري ور وپېژني، چې په خپل لښکر کښې یې له هلو ځلو کولو برخمن کړي.

ګرګین د هغه دعوت او بلنه ومنله او په ټاکلي وخت ګرګین مېلمستیا ته ورحاضر شو. میرویس په ځانګړیو او ټاکلیو ځایونو کښې خپل پلویان ځای په ځای کړي و، چې د ده اشارې ته یې کتل.

ګرګین، چې دا شانداره مېلمستیا تېره کړه؛ پخپلو شرابو مست پرېووت. د میرویس خان نیکه له خوا د هېواد، پښتنو، دین او خپلواکۍ ژغورنې لپاره اشاره وشوه، چې پر یوه رېغ ګرګین او ډله یې د پښتنو د تورو لاندې شول.

دا د هغو پښتنو د وینو غچ و، چې د ګرګین له لاسه وژل شوي وه. د یادونې وړ ده، چې ګرګین یو نرښځي ووژلو. دا نرښځی مراد خان نومېده او هغه ته هم میرویس خان نیکه دغه دنده ورسپارلې وه. د ګرګین دوژلو په طریقه کښې نور روایتونه هم شته. خو دا یې غوره دي. دا پېښه د ذي القعدې په ۲۹_۱۱۱۹هـ. ق کال تر سره شوې ده.

## د کندهار ښار نیول:

ګرګین ووژل شو، خو د کندهار د ښار نیول آسان کار نه و؛ ځکه. چې د ګرجیانو عسکرو د کلا پر دیوالو توپونه ایښي وه. میرویس خان نیکه د دې لپاره، چې جنګ پېښ نه شي؛ د ګرګین کالي یې واغوستل، خپلو ملګرو ته یې د ګرګین د ملګرو کالي ور په غاړه کړل. د هغوی پر آسو سپاره شول او ترغوني مانښام د ښار پر لوري رهي شول یعنې لکه ګرګین به چې روانېده.

میرویس خان نیکه د ښار په شاو خوا سیمو کښې څه نا څه درې زره پښتانه پټ کښېنول؛ گرجي ساتونکي پر میرویس نیکه تېروتل او هغه ته یې په پوره درناوي د ننوتو اجازه ورکړه. میرویس نیکه سمدلاسه د کلا پر ساتونکیو یرغل وکړ؛ هغه درې زره پښتانه، چې د ښار شاو خوا ته ناست ول هغه هم ښار ته ورننوتل، گرجي عسکر یې ټول تار او مار کړل او ښار یې ونیو. میرویس خان نیکه پرته له ځنډه اعلان وکړ او جارچي جار وواهه چې:

د هر هغه چا مال او ځان په امن کښې دي، چې گرجي او پارسي عسکر؛ ونه ساتي او ځای ور نه کړي خلکو دغه خبره ومنله؛ گرجیان او پارسیان پو فنا شول او کندهار د پښتنو د ملي حکومت مرکز شو.

په همدې شپه میرویس خان نیکه الله پاک ته سجده وکړه او ویې ویل:

ای پاکه ربه! دا یو له هغو لویو کارونو څخه و، چې مور مې ما ته پرې سپارښتنې کړې او ما ته یې راسپارلې. دا، خو ستا د بندگانو او پالونکیو خدمت و، چې د ترسره کولو غوښتنه مې کړې وه.

سلطان حسین صفوي ده ته سفیر واستاوه، چې توصیه ورته وکړي هغه سفیر یې ونیولو او ویې ساته. شاه حسین پوه شو، چې بې له جنگ او مقاومته بله چاره نه شته؛ نو د گرگین وراره خسرو خان یې د خپل تره (گرگین) د غچ اخستلو لپاره واستاوه. خو میرویس خان نیکه د رېیمه لویه جرگه جوړه کړه.

## د رېیمه ملي جرگه او د میرویس خان وینا:

لکه چې کندهار له دښمنانو پاک او خپلواک شو؛ نو میرویس خان نیکه مشران راوبلل او د رېیمه ملي جرگه یې جوړه کړه او دا سې یې ورته وویل:

پښتنو ! په ايمان درته وايم، چې زما مطلب يوازې او يوازې ستاسې خپلواکي ده. خپلواکي هغه بې بها نعمت دی، چې د هغې د ترلاسه کولو لپاره دا چلونه او جنګونه روا ول اوس ګرګين له منځه ووت، د کندهار د پښتنو لپاره د اصفهان د عسکرو ويستل ګران کار نه دی. که له ما سره يو شئ او زما ملا وتړئ؛ زه به د مريتوب څنځير ستاسې له غاړې ليرې کړم؛ د خپلواکي بيرغ به مو د هېواد په هر ګوټ او د جهان په ټولو ملتونو کښې پورته شي. د پارس د شيعه ګانو د سلطې جغ به مو له اوږو پرېوځي.

پر الله پاک توکل وکړئ، زړونه خوشحاله لرئ؛ ستاسې نيتونه پاک او سپېڅلي دي. د لوی خدای (ج) په کومک کولای شو، چې پر غښتليو روا فضو بری ومومو. اوس د پارس حکومت د نا اهلانو په لاس کښې دی او د نړېدو په خوا روان دی.

زه، چې په اصفهان کښې وم؛ پر ټولو حالاتو يې خبروم. د دولت غتيان په دوه لارو روان دي، يو د بل په ضد کار کوي. په عيش او عشرت اخته دي؛ دولت يې هېر دئ. سترګور سړی په کښې نشته، چې د نظام په باره کښې خوله وښوروي. د خدای له خوا هم بلاګانې پرې نازلېدلې؛ يوه بلا خارجي سفير و، چې د شيروان او آذربايجان ارمنيان يې ياغيتوب ته هڅول. په پای کښې ګرجستان هم د روسيې تابع شو بيا هم کېدی شي، لازم تدارکات ونيول شي. خدای مو مل او ساتندوی دی، بری او فتحه زمونږ ده.

(نعوذ بالله) که مونږ مقاومت ونه شو کړلی، د هند پاچا زمونږ مرستې ته حاضر دی، خو که پخپله خپله دفاع وکړو. لاس ته راغلې شتمني به ټوله زمونږ وي آيا دا لازمه ده. چې دا ټولې په لاس راوړې ولجې

پخپله له لاسه وباسو. له پښتني لوړ همت څخه کار واخلئ، څو (څلور طلايي اوقيه) چې هره ورځ پارس ته تلې راوسپموو او نور ثروت هم لاسته راوړو، خپلې ارپې پرې پوره کړو. سربېره پر دې ددې گمراه ډلې له منځه وړل د ټولو مسلمانانو دنده ده او له دوی سره جگړه يوه فی سبيل الله غزا ده. (دلته يې دمکې دملايانو فتواگانې ملي جرگې ته ښکاره کړې او ويې ويل):

هغه څه، چې دغيرت او شريعت غوښتنه وه، تاسې ته مې وړاندې کړه. اوس که په تاسو کښې داسې څوک وي، چې بيا هم دمريتوب او ذلت ارادې پر عزت او خپلواکۍ غوره گڼي؛ د ظالمانو او ملحدانو خدمت يې د پښتنو ورونو تر ملاتړه خوښ وي، په ډکه خوله دې ووايي. هيڅوک به غرض پرې ونه کړي. خو داسې څوک دې له مونږ سره داستوگنې هيله نه کوي؛ زمونږ دخپلواکې خاورې له پولې دې ووځي او دکوم ظالم پاچا ترسيوري لاندې دې ژوند وکړي.

جرگې دميرويس غږ وستايه او ژمنه يې وکړه، چې ددغې ارادې د پلي کولو په لاره کښې به تر وروستۍ سلگۍ ورسره ملگري وي.

ميرويس خان وويل: زما ورونو !

پر الهي احکامود حکم کولو وخت راغلی؛ پښتنانه اتلان بايد د ځورونې او کړونې تر بار لاندې لاړ نه شي.

په همدې ورځ پښتنو ميرويس خان نيکه خپل مشر وټاکه که څه هم د پاچاهۍ حيثيت يې درلود، خو د پاچا نوم يې غوره ونه گڼلو او د ملي مشر په نامه يې د دعا لاسونه پورته کړل. ميرويس خان نيکه ثابته کړه، چې دا ټولې هلې ځلې او کارونه يې يوازې او يوازې د ملي لوړتيا او خپلواکۍ لپاره تر سره کړي دي.

## د ولجې نيول:

د ګرګين له مرګه څلور ورځې وروسته شنه سهار په خړه کښې هغه شپږ سوه ګرجي عسکر، چې د بلوڅو او کاکړو د ترټلو لپاره تللي وه، ببرته ښار ته راغلل. د ګرګين له وژلو خبر نه ول او نه يې ساتونکيو مخه ونيوله کله، چې ښار ته ننوتل؛ ناڅاپه د توپونو او ټوپکو له خولو پر ګوليو بدرګه شول. د ماتې په دې بهير کښې ترګرشک او قلات پورې نه يوازې تعقيب شول، بلکې ولجې ترې هم ونيول شوې او اصفهان ته يې مات او ګوډ ځانونه ورسول، چې پارسيانو ته د پېښې کيسه وکړي.

## څلورمه جرګه او د ميرويس خان نيکه بله وينا:

ميرويس خان نيکه بيا مشران او له ښاره ليرې غرني او سيدونکي راوبلل، چې راشئ؛ مونږ بريالي شوي يو. جرګه جوړه شوه او داسې يې وژته وويل:

په رښتيا، چې تاسې د اسلام په لاره کښې ستر خدمت پای ته رسولی دی؛ تاسو خپلې کړنې په مرمرينو ډبرو کښې کيندلې او د قيامت ورځې ته مو ښه نېک عمل پرېښې، چې په قيامت کښې به ستاسو په حسنه اعمالو کښې وشمېرل شي. ستاسې له زيار او هڅو مننه کوم. خو په دې هم پوه شئ، چې تاسو ته د عمادالدوله صادر شوی فرمان د ګرګين د قتل په اړه جعلي و. زه پښتني غيرت مجبور کړم، چې داسې وکړم. تېر په تېر، خو له دې وروسته به په يوه زړه متحد شو؛ د محمد (ص) د دين په لاره کښې به سر و مال فدا کړو.

دا کار، چې مونږ کړی د پارس د پاچا په اند ګناه ده او مونږ باغيان بولي، غچ رانه اخلي او عسکر به راليږي که بری و مو مې نرينه به له سپعه تېر کړي او ښځې به مو مينځې بوځي.

په دې وخت کښې يوه خان وويل: د پارس دولت ډېر ځواکمن دى؛ د پښتنو دا لږ زلميان به څنګه د هغو مقابله وکړي؟
ميرويس دستي دا لاندې آيت تلاوت کړ: [کَم مِن فِئَة قليلة غلبة فِئَة کثيرة] د دې آيت له تلاوت سره يې خپله د زړه ډاډ منه وينا وکړه، چې له هرې خوا د الله اکبر ږغونه پورته شول؛ ميرويس خان نيکه يې مشر وټاکه او ټول واک يې ده ته ورکړ او جرګه پای ته ورسېده او ميرويس خان نيکه په کار پيل وکړ.

## د ميرويس خان نيکه د کار پيل:

ميرويس خان نيکه په کار پيل وکړ؛ وسله يې پر ځلميانو ووېشله، وسله جوړونکيو ته يې پاملرنه وکړه، د کلاګانو د بيا رغونې کار يې پيل کړ، تر واکمنۍ لاندې يې عسکري نظام برابر کړل او د پارس د پاچا په نوم يې ليک وليکه
د فارس پاچا ته د ميرويس خان نيکه ليک: [(له القابو وروسته) په دې تقريب، چې تاسې ما ته اجازه راکړې وه... چې بايد د ګرګين هلې ځلې (حالات) تر ځارنې (مراقبت) لاندې ونيول شي... کله، چې کندهار ته راورسېدم؛ څه موده تېره نه وه، چې د پښتنو قبيلې سره يوځای شوې.. ګرګين يې د ښار له کلا راوويست او په يوه کلي کې يې په يوه بريد (هجوم) کې وواژه او بيا يې کلا ونيوله... زه يې له خپلې ځمکې راوستم او د خپلو ځانونو مشر يې وټاکلم. اوس يې لويې ډلې جوړې کړي او نه ښايي، چې زما د خير انديش دولت په حق کښې اشتباه وکړئ. دا هم د شکر ځای دی، چې په داسې نازک او له اختلاله په ډک وخت کې يې کوم ناپوه او حق ناشناسه مشر کړی نه دی. دا ستاسې د دولت نېکمرغي ده، چې زه د پښتنو مشر يم؛ ځکه، چې ذ دې اختلال

په رفع کولو کې به زه له پوره اخلاصه زيار وباسم انشاء الله... که په دې اړه تاسې ته نور څه وويل شي؛ تاسې اهميت ورنه کړئ او له دې خوا ټول احوال او اوضاع ماته راوسپارئ... نه ښايي، چې عسکر راوليږئ.. پښتانه اوس جنګ ته ولاړ دي؛ شاهي عسکر به له مرګ او ژوبلې سره مخ شي اويا به د هند مغلو ته مملکت تسليم کړي.. ]

په اصفهان کې د ميرويس خان نيکه د کړنلارې اغېز: شاحسين او درباريان يې، چې خبر شول؛ نو له خفګان پرته يې محمد خان نومی استازی کندهار ته واستاوه. هغه په نصيحت کولو اوضاع سموله او د شاه اطاعت ته يې د بلنې تجربه لرله، خو ميرويس خان نيکه هغه بندي کړ. د پارس پاچا بل ځل د هرات والي (محمد جانخان) کندهار ته واستاو چې د ميرويس د حج ملګري و، ميرويس هغه د پېژند ګلوۍ په پوره درناوي بندي خانې ته ولېږه. کله، چې اصفهان خبر شو؛ نو په (۱۱۲۲ه - ۱۷۱۹م) کال کې يې د هرات والي ته، چې د محمد جانخان په عوض مقرر شوی و، کندهار ته د عسکرو د لېږلو امر وکړ. ميرويس هم پنځه زره پوځ د هغوی مقابلې ته وويست، چې سخته ماتې يې ورکړه. له دې وروسته پارسيانو په ۱۸ مياشتو کښې څلور ځله ستر بريدونه وکړل، چې په څلورو واړو جګړو کښې ناکام شول نور؛ نو د سترې تيارۍ په فکر شول او ميرويس هم ځان ورته ځواکمناوه او له هند سره يې د ښو اړيکو د ټينګولو تکل پيل کړ.

له هندي واکمنو سره د ميرويس خان نيکه خبرې: هند هم د افغانانو خپلواکۍ ته په ښه سترګه نه کتل. په ښکاره يې په رسميت و پېژاند، خو له پارس سره يې پټو خبرو ته په دې هيله وده او پراختيا ورکړه، چې د پښتنو خپلواکي د دواړو هېوادونو په تاوان ده.

میرویس پدې پوهېده، خو د ((ملي فلسفي)) او ((افغان روح))
غوښتنه داوه، چې د خبرو لاره وتړي. ده د تجارت د خپل ځانګړي؛ پ
سوداګری پر مهال له یو شمېر درباریانو سره پېژندل او په هغو کښې
یې د ښه سړیتوب ستر امتیاز خپل کړی و؛ د هغوی یو شمېر چارواکو
ته به یې ډالی لېږلې او راخپلول به یې؛ نو د هغوی د پوره پاملرنې
د خپلولو په هیله یې خپلې اړیکې غښتلې کړې، چې له پارس سره د
مخالفت پر غوره ټکولټون پیل کړي. په پای کښې یې د هند دربار ته
ولیکل:
د هند دربار ته د میرویس خان نیکه لیک: [مونږ له ټولو ګاونډیانو
څخه د هند پر ګاونډیتوب ډېر ویاړو؛ ځکه، چې... او هیله من یو، چې
د اړتیا له مخې به مو ملګري شي او مرسته به هم وکړي. هوکې !
پښتنو د پارس د پاچا په خلاف پربکړه کړې؛ ځکه. چې... هغوی زمونږ
وژنې ته عسکر رالیږلي دي. که یوه ډله عسکر زمونږ مرستې ته
راولېږل شي... پر دښمنانو به بری و مومو او غالب به شو....].
د هند واکمن په ښکاره د دې لیک په لوست خوښ شو او د میرویس
خان نیکه د استازیو عزت یې هم وکړ او له پوره ډاډ سره یې رخصت
کړل؛ نو میرویس خان له دې برخې ډاډه او خوشحاله شو. خو د خسرو
خان په قوماندې د پارس ۳۱ زره عسکر و سره مخ شو. پارس د غه مهال
د روسي سفیر اسرائیل اري په محترمانه ډول رخصت کړ. چې د
((استراخان)) په ښار کښې مړ شو؛ نو، ځکه د پارسیانو زړونه له هغه
لوري بېغمه شول او کندهار ته یې د ګرګین وراره خسرو خان د
ګرجستان حاکم د یو دېرش زره او دوه سوه عسکرو په مشری کندهار
ته وټاکه. چې د خپل تره انتقام واخلي.

خسرو فکر وکړ، چې که دعسکرو له لارې ناکامېږي باید په پښتنو کې نفاق واچوي. ددې لپاره یې هرات ته عبدالله خان ابدالی سدوزی د والي په توګه ولیږه او دی یې د ابدالیو او غلجیو د پخوانیو دښمنیو تازه کولو ته وهڅاوه. خسرو خان د هرات ابدالي زلمیان ورته راټول کړل او د کندهار محاصرې ته یې له ځان سره وروستل، خو عبدالله خان ونه غوښتل، چې د میرویس خان نیکه په مقابل کښې ودرېږي؛ نو په لاره کښې یې ځان د خسرو خان له عسکرو ګوښه کړ او د ابدالیو او غلجو په دښمنیو یې ډېره کېښنوده.

## جګړې ته دمیرویس خان نیکه تیاری اوځانګړتیا

میرویس خان نیکه، چې د هرات د والي (عبد الله خان ابدالي سدوزي) په پاک نیت خبر شو؛ نو د ګرجي خسروجګړې ته یې ټول پښتانه چمتو کړل او امر یې وکړ، چې غلې کورونو ته دننه کړئ او یا یې ښار ته راوړئ. د څه ناڅه دوه کلونو دمحاصرې تیاري یې هم ونیوله؛ سپین ږیري او ښځې، چې د جنګ نه ول، هغه یې له ښاره لیرې ځایونو ته واستولې، د سپرو نظام یې د داود خان په مشرۍ دفراه درې خواوو ته واستولې. هلته یې دبارکزو او نوروټبرونو ډېر زلمیان له ځان سره ملګري کړل او پر ګرجي خسرو خان یې، چې له فراه راخوځېدلی و، برید وکړ. میرویس خان له خپلو عسکرو سره دبست په کنډوالو کې دګرجي خسرو لاره څارله. خسرو خان دخپلو ۳۱ زریز لښکر سره دهلمند تر غاړو راورسېد. خو پښتانه یې د څه ناڅه لس زره سرتېرو په لرنه مخې ته ودرېدل او خسرو خان ته یې له هلمنده د تېرېدنې وخت ور نه کړ. ګرجي خسرو د کندهار ښار محاصره کړ، خو میرویس نیکه له محاصرې د باندې پاتې شو. خسرو خان له ځان سره خوراکي مواد نه لرل؛ نو ډېر وارخطا شو، خو دا مطلب یې نه څرګند اوه.

پارسي لښکرو د گرجي خسرو خان تر مشرۍ لاندې د ښار له محاصره شو يو څخه بې قېد او شرط تسليمي وغوښتله، خو پښتنو و نه منله او جنگ پيل شو. د ښار د ساتونکيو په ېلا ېلو بريدونو کې پارسيان ژوبل‌بېدل، خو ميرويس خان نيکه، چې له ښاره د باندې و ؛ پښتانه يې راټول کړل او د ښار له جنوبي لوري يې خسرو خان تر بريد لاندې راوست. ميرويس نيکه د ښار ساتونکو ته پيغام واستاوه، چې: دا به غوره وي، چې ټول په مېړانه زيار و باسو ؛ يا په نېکنامۍ مړه شو او يا پر غليمانو برۍ ومومو.

په دې خبرې د دوی وينې وخوټېدلې او مېړانه يې غښتلې شوه.

د خسرو خان مرگ او د پارسيانو تېښته: د خسرو لښکر د پښتنو د اور، د خپلې خوراکي دنشتوالي او ستړيا له کبله ورځ په ورځ نا هيله کېدل او ژوند يې د مرگ له گواښ سره مخ و. دوی نه پوهېدل، چې څه وکړي؛ ژمی هم پرې را روان و او ميرويس نيکه پرې لارې هم وتړلې. په پای کې اړ شول، چې د تېښتې پرېکړه وکړي؛ ځکه، چې بې اتفاقي پيدا شوه، پارسيان په يوه لاره او گرجيان په بله لاره روان شول.

عباس قلي خان د پارس د دربار معتمد ميرويس خان ته حال بيان کړ. ميرويس نيکه له اته سوه اوښانو او شپاړس زره پښتنو سره خسرو خان تعقيب کړ، چې په يو ښکاره بريد کې خسرو خان له خپل اکا (گرگين) سره يو ځای شو او ميرويس خان خپل گران هېواد د پرديو له شومو قدمونو خپلواکه کړ. يعنې د خسرو خان له ۳۱ زره عسکرو څخه اووه سوه گوډ و مات پاتې شول او نور ټول تباه کړای شول. ميرويس خان نيکه د هېواد پر خپلواکۍ شکر وويست او نه يوازې بريالی کندهار ته راستون شو، بلکې ترلاسه شوې ولجې يې پر ولس هم

وو بشلي. د میرویس نیکه په مشرۍ د گرجي خسرو خان وژنه او دا نـحه د ۱۱۲۳هـ کال د روژې پر ۷ ورځ تر سره شوې ده.
دوه کاله وروسته د پارسیانو د بل لښکر ماته: اصفهان د رستم خان په مشرۍ یو لښکر له پښتانه سره جگړې ته را ولېږه. میرویس خان نیکه ش د محمود د هغه مقابلې ته په ۱۱۲۳هـ کال کې واستاوه، خو رستم خان له د ې و برې، چې د خسرو کانه پرې ونه شي، بېرته اصفهان ته وتښتېد او لښکر یې په ۱۱۲۶هـ ۱۷۱۴ع کې مات شو. د اصفهان او شاه حسین وروستي هڅه همدا وه، چې د اصفهان په ناکامۍ پای ته ورسېده. له دې پېښو وروسته میرویس نیکه د پښتنو ((پښتون ملت)) خپلواک مشر شو. د هرات له ابدالیانو پرته یې د افغانستان ټول پښتانه متحد کړل او د پښتنو د خپلواک حکومت پلازمېنه یې د کندهار زوړ ښار وټاکه؛ د هېواد د هر اړخیزې ودې کار یې پیل کړ. میرویس خان په پنځو شپږو کلونو کې د خپلې ځواکمنۍ ریښې ټینگې کړې، خو عمر ورسره وفا ونه کړه.
میرویس خان نیکه نرم او د ډاډ وړ سړی و؛ پراخ فکر او ځلانده غوښتنه یې درلوده. لوړ اخلاق او سخاوت یې د یادونې وړ دي، خو ډېره مرسته ورسره دده فصیحې ژبې او خوږې وینا کوله یعنې جذاب نطق یې درلود.
میرویس خان د غلجو، یو شمېر ابدالیانو او سدوزو مشر و؛ ځکه کله، چې ابدالي دولت خان له خپل زوی نظر محمد خان او له فقیرنومي مل سره د گرگین له لوري په شهادت ورسید ل (که څه هم دولت خان نور دوه زامن هم درلودل، چې یو رستم خان او بل زمان خان (د احمد شاه بابا پلار) و. خو د ټولو مخ میرویس خان نیکه لوري ته ور وگرځېد ) نو میرویس خان نیکه هم له خپل عقل او تدبیره

کاروا خسیت؛ گرگین یې هم له ځانه راضي کړاو دی یې د ځان مشاور وگاڼه؛ نو، ځکه دغلجو او ابدالیانو مشرتوب میرویس ته وسپارل شو. له دې لامله نوړو هم د خپلواکۍ له لاسته راوړلو وروسته د (نیکه) لقب ورکړ او تر اوسه یې (حاجي میرویس خان نیکه) بولي.
دوه زامن ترې پاتې شول، چې مشر یې محمود ۱۸ کلن و. د ده د پاتې ارمانونو او کارونو واگې د ده ورور عبدالله خان ته په لاس ورغلې، خو عبدالله خان له اصفهان سره روغه وکړه.
د میرویس خان نیکه په مزار کې د زیارت کوونکیو سترگې لو مړی پر لاندې لنډۍ لگیږي:

د ننگ تورته به مې هر هډ وي
که پس له مړینې مې پر گور راشې مینه

## د ایران د فتحې پوځي اتلان او د میرویس نیکه د مکتب (خپلواکۍ پوهنې) سړي

### د میرویس خان نیکه وفات:

میرویس خان نیکه پښتانه یو والي ته راوبلل. له پردیو خپلواک شول او د خپلواکۍ رپی (بیرغ) یې ورته ورپاوه، خو له ډېرو جگړو، غیرتمنو کړو-وړو او هلو ځلو وروسته له یوې ناروغۍ یې د اجل نېټه راورسېده او د ۱۱۲۷ هـ کال د ذی الحجې په ۲۸ ورځ یې د مرگ استازي ته لبیک ووایه. خو ډېرې هیلې او موخې یې پاتې شوې (خوله نیکه مرغه یې مشر زوي محمود سرته ورسولې).
میرویس خان نیکه د پارس په مقابل کې رغنده دریځ درلود. د ده په مړینه ټول پښتانه غمجن شول.

د میرویس نیکه د ناروغۍ پر مهال دېر خلک پوښتنې ته ورتلل. کله، چې پوه شو نه رغېږي ؛ نود پښتنو مشران یې راټول کړل او په لاندې لنډو لنډو جملو کې یې داسې وصیت ورته وکړ:
- خپل ټول کارونه الله پاک ته وسپارئ او په الله پاک توکل کوئ ؛ روان جنګ په میړانه پر مخ بوځئ. - په هر کار کې شرفمندانه وضعیت غور کړئ او خپل پت ساتئ.
- په هر کار او هر ځای کې متحد اوسئ، خپل هر رګ او پله قوي کړئ.
- هیڅکله د پارسیانو اطاعت ونه منئ.
- په هر قوت او زیار، چې ممکنه وي؛ هغه دښمنان، چې پر تاسو برید کوي پر شا یې ووهئ، ځکه ستاسې دښمنان د درباري اختلافاتو، فساد او خیانت له کبله خورا په تلوار د فنا خوا ته روان دي. د دوی د شمېر له دېروالي مه وېرېږئ، ځکه تاسې متحد یاست او پر الله پاک مو توکل کړی دی. یقین لرم، چې دوی به مغلوبه کړئ.
په دې وخت کې یې سا لنډه لنډه شوه او نور یې د خبرو توان نه درلود. په دېر تکلیف یې سترګې رونې کړې او د شهادت تر کلمې د مخه یې وویل:
((اصفهان ونیسئ.))

## د میرویس نیکه مزار :

د میرویس نیکه مزار د کندهار د کوکران په کلي کښې دی، چې له زاړه ښاره دوه کروه او له نوي ښاره شپږ کروه واټن لري. د ده پر مزار د محمد نادر شاه له خوا د احمد شاه بابا د ځلي په څېر ځلی جوړ شوی دی. له میرویس خان نیکه دوه زامن محمود، حسین او یوه لور بي بي زینبه پاتې شول.

## د میرویس خان نیکه وروړ میر عبدالعزیز خان:

کله، چې میرویس بابا وفات شو د ده وروړ میر عبد العزیز د کندها ر مشر وټاکل شو. په دغه وخت کې د میرویس خان زوی محمود ۱۸ کلن و. عبد العزیز خان، چې د میرویس خان نیکه په څېر پراخې غوښتنې نه درلودې؛ نو د ده سیاست بېل و.

دی سوله غوښتونکی و او په دې اړه د ده اړیکې له صفوي دولت سره داسې ښکاره شوې، چې په یو لړ خپلواکیو قانع شوی او صفوي دولت ته د څه رعایت په فکر کې و، خو محمود د هغه دغه اړیکې قوم ته څرګندې کړې. لکه څنګه، چې په افغاني ټولنه کې ملي ګټې تر ځانګړیو ګټیو د درناوي وړدي؛ نو عبد العزیز له مشرۍ لیرې کړای شو او سخته سزا هم ورکړل شوه.

محمود د شاه محمود په نامه د پښتنو بادشاهي اعلام کړه. دی زلمی و، خو ځواک او زړورتیا یې له حده زیاته وه. د عبد العزیز زوی اشرف و. اوس، چې وګورو د ملي مصلحت له مخې عبد العزیز د اشرف پلار په اعدام محکوم و، خو اشرف او محمود خوا په خوا کار کوي، چې د محمود د بادشاهۍ په دوره کې اشرف د تهران والي و، چې په دې صورت کې هر سړی پوهېدای شي، چې د وطن په لار کې پښتنانه د دغسې قربانیو ورکولو ته هم چمتو ول. دافغان ملي تاریخ په ډاډ د دغه وخت مشران د کافي پوهې، انسانیت او وطن دوستۍ خاوندان ول [ فرهاد، حداد قدرت الله – د افغان ملي تاریخ. د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز-۱۳۸۳ل-۷۲۱ مخ].

د حضرت میرویس نیکه(رح) د مکتب روزل شوي ملي او پوځي سړي (شخصیتونه) د تېرو ښکېلاکي پېړیو په ټول سیاسي بهیر کې هېر

شول او مونږ تر دې دمه نه پېژاندل کله، چې په ۱۳۶۷ل هـ ۱۹۸۸ع کال د دوکتور ويليم فلور، چې په ايران کې يې تجارتي او سياسي هلې ځلې تر سره کولې او د هالينډي شرکت راپورونه خپاره شول؛ نو ور سره د هغو اتلانو نومونه هم په ډاګه شول، چې مونږ ته يې پوره تاريخي وياړنې را په برخه کړې دي:

۱ـ ميرويس نيکه

۲ـ اعليحضرت شاه محمود افغان هوتک، د حضرت ميرويس نيکه رحمة الله عليه زوی.

۳ـ اعليحضرت شاه اشرف افغان هوتک، د حضرت ميرويس نيکه رحمة الله عليه وراره.

۴ـ سيدال خان ناسر سرلښکری د رود سر فاتح.

۵ـ امان الله خان سرلښکر د ګلناباد فاتح.

۶ـ آزاد خان د غربي ايران حاکم او له نادر افشار وروسته د ايران د پاچاهۍ داوطلب.

۷ـ نصر الله خان.

۸ـ ملا زعفران - قاضي القضات.

۹ـ زبردست خان د شيراز والي.

۱۰ـ ندا خان سرلښکری.

۱۱ـ زلي خان صدراعظم يا اعتماد الدوله

۱۲ـ احمد خان بلوځ د عثماني خلافت په دربار کې ډيپلومات سفير.

۱۳ـ بارو خان په هرمز کې افغان استازی.

۱۴ـ رضاو الله خان په يزد کې د شاه محمود سرلښکری.

۱۵ـ الماس خان د دربار وزير.

۱۶ـ محمد نشان خان د خزانې ناظر.

۱۷ _ خسرو بیګ.
۱۸ _ صفی قلي خان د زبردست خان مرستیال.
۱۹ _ زاهد علي خان سرلښکری او د هرمز حاکم.
۲۰ _ امین بیګ په ۱۷۲۵ع کال کې د څه مودې لپاره د اعلیحضرت شاه اشرف افغان هوتک اعتماد الدوله
دولتي تشکیلات:
۱ _ زلي خان- اعتماد الدوله
۲ _ قادر خان- قورچي باشي
۳ _ قاسم خا ن -توپک چي آغاسي پر خپل مقام پاتې شو.
۴ _ محمد امین بیګ- قوللر اغاسي باشي.
۵ _ محمد شان خان -ایشک اغاسي باشي (نوی نوم یې اخلاص خان).
۶ _ ناصر خان - دیوان بېګی
۷ _ اسمعیل سلطان - میرا خور باشي
۸ _ میرزا رفیع-مستوفي الممالک
۹ _ میرزا اسماعیل -مستوفي خاصه
۱۰ _ میرزا ابراهیم -منشي الممالک او د اعتماد الدوله د رقم واکدار.
۱۱ _ میرزا تقي -وقایع نویس
۱۲ _ میرزا احمد -د اصفهان کلانتر د پخوا په شان پاتې شو.
۱۳ _ میرزا مومن - د اصفهان وزیر.
۱۴ _ میرزا علي -د پخوانیو خاصه مستوفي
۱۵ _ ملا زعفران -ملا باشي
۱۶ _ میان صدیق - قاضي القضات یا نواب.

((اعلیحضرت شاه محمود افغان روز هفتم نوامبر ۱۷۲۲ م به تخت نشست و مجلس شاهی تشکیل داد. هالندیان در توصیف خلق وخو

وهيات ظاهری محمود(اعليحضرت شاه فاتح) می نويسد: ((وجود مبارک)) داسې سړی دی، چې ۲۴ کلن دی، خو عادل، هوښيار، بيدار او محافظ دی او زيات وخت په آزاده هوا کې تېروي.

محمود د خپلې پاچاهۍ پر لومړيو ورځو کې تولو درباريانو ته خلعتونه او منصبونه په لاندې بڼه ورکړل:

۱ ـ امام علي خان د اعتماد الدوله وروړ د بندر عباس (گمبرون) د حکومت او د اصفهان داروغه.

۲ ـ ميرزا زاهد علي د گمبرون (بندرعباس) شاهبندر مقام ورکړ شو.

۳ ـ محمد علي د ميرزا رفيع زوی د شيراز وزير.

۴ ـ اسحاق خان تفنگچي باشی د کهگيلويه والي.

۵ ـ امين علي قلي خان د دشستان بيگلر بېگی.

۶ ـ ابراهيم خان د کرمان والي د سوستر حاکم.

۷ ـ ابراهيم خان د محمد زمان خان زوی قورچي باشي (دقم حاکم).

۸ ـ دولت مراد قوللر اغاسي.

۹ ـ محمد يونس خان ديوان بېگی.

دا وروستي دوه تنه افغانان ول.

کله چې شاه اشرف په شهادت ورسيد؛ دوه تنو افغان مشرانو د ايران په يوې يوې برخې حکومتونه کول، چې يو يې آزاد خان وا و بل يې محمود خان بلوڅ. د هر يو ذکر به په خپل ځای کې راشي.

## د ميرويس خان نيکه زوی هوتکي شاه محمود او د پارس فتحه

په ۱۱۲۷ هـ کال کې ميرويس نيکه په حق ورسيد خو مشر زوی محمود يې ارمانونه پوره او ترسره کړل.

شاه محمود د خپل پلار ميرويس نيکه له جرگو او مرکو ډېر څه زده کړي وه. که څه هم تنکی ځوان و، خو د ميرويس نيکه مدرسه (افغان

خپلواکي پوهنه) يې ويلې وه او په دې پوهېده، چې د پارس پر لوري نه يوازې حركت وكړي، بلكې فتح يې هم كړي، چې د پارس مشران تر عمره پرېښتنو د باداري خيال له ذهن څخه وباسي.
سره له دې، چې ميرويس نيكه د ايران پنځوس زره لښكر په څو حملو كې تباه كړي وه، چې دا په خپله د پارس واكمنو ته لوى سبق و، خو شاه محمود پر پارس (اوسني ايران) د يرغل او بريد ترتيبات ونيول، چې له يوې خوا د افغان راتلونكي نسلونه له دغه اړخه پوره ډاډه وي اوله بلې خوا به د افغان سيمې د يوې برخې (لويديځ لوري) خپلواكي ترلاسه شي، خو ختيځ لوری ترې پاتې شو.

## كرمان:

د ۱۷۱۹ع كال د نومبر پر څلورمه شاه محمود كرمان ته ورسيد. د نومبر په پنځمه نېټه، چې د جعفر خان زوى سيستاني اسد الله خان ورسره و، د كرمان په ښار كې څرگند شو. افغانانو هر ډول وسله درلوده، چې شمېر يې شپږ يا اووه زرو ته رسېده.
محمود امر وكړ، چې كه د چا كورونه وران شوي وي ورته جوړ يې كړئ؛ تر هغې دوى كولاى شي په سركاري باغونو كې واوسي.
محمود وفرمايل: څوك، چې وسله په لاس نه لري د هغوى سر او مال په امن دى. له دې لامله خلك راغلل، چې شاه محمود د ميرويس خان نيكه زوى ووينې.
محمود دوى ته وويل:
په ډاډه زړه خپلو كارو ته لاړ شئ؛ څوك وېره نه شي اچولاى.
بنديان مو خلاصيږي او خوراكي څيزونه به ارزان شي.
هغه لاسونه به لنډ شي، چې ستاسو ژوند يې تنگ كړى و.
د هر دين او مذهب خلك به د خپل دين مراسم پر ځاى كوي؛ مسلمان،

زردښتي، سني، شيعه، مسيحي، يهود، هندو، چې دلته دي، ټول په امن او آزاد دي.
په کرمان کې د هالنډي، انګليسي او هندي تاجرانو مالونه واخستل شول، خو بېرته دوی ته وسپارل شول. هغو، چې د خلکو په مال او ناموس تېری کړی و، بې توپيره اعدام شول.
بلوڅانو او سيستانيانو د شاه محمود مرسته کوله، د کرمان ديني او مذهبي اقليتونه خوشحاله او په کرار شول.

**د عباس بندر:**

په ۱۷۲۱ع کال کې شاه محمود بيا له کندهاره وخوځېد او د عباس بندر يې د اکتوبر پر پنځلسمه محاصره کړ. په دې بريد کې څلور زره بلوڅانو د شاه محمود مرسته کوله. شاه محمود امر وکړ، چې: له ټوپک او وسلې پرته د چا مال يا پيسې وانه خلئ!
انګريزانو صفوي بادشاه ته وويل، چې: مونږ به تر خپلې وسې ستا مرسته وکړو او هغو به بېرته ستانه کړو.
يوه مامور ورته وويل: افغانان شپاړس زره دي، څلوېښت زره عسکرو يې مخه ونه نيول شوه. انګرېزان به څنګه دا کار وکولی شي؟
په دې وخت کې د هالينډ او انګليس تجارتي کمپنۍ هلته وې او له دربار سره يې ښې اړيکې درلودې.

**اصفهان:**

د ۱۷۲۲ع کال د مارچ په ۷ د ګلناباد سلطان امان الله خان د ډګر قوماندانې وکړه. د پارس (اوسني ايران) د هوسا او پر وسلو د سمبال لښکر مقابلې ته په داسې حال کې چمتو شو، چې شمېر يې پنځوس زرو ته رسېده. خو افغانانو د اوښانو پر شا يو ډول واړه توپونه درلودل کله، چې د ايران لښکرو پرې بريد وکړ؛ نو افغانان د خپل

قوماندان د قوماندې له مخې شا ته لاړل او له هغو وړو توپونو يې، چې پر اوښانو بار شوي وه له شا اور وغورځاوه (دغو توپونو ته يې زنبورک وايه).

پارسيان وارخطا شول او ماته يې وکړه. د قوماندان په قومانده افغانان بېرته پرې ورغلل؛ ډېر يې مړه کړل توپونه، وسلې او نور مهمات يې ترې ونيول.

ماښام شاه محمود د صفوي پاچايانو قصر ته ننووت، چې په فرخ آباد کې و؛ هغه يې د افغان شاهنشاهيت استوګنځی کړ. دا يران باچا د اصفهان په ښار کې ايسار پاتې شو، خو د هغه زوی طهماسب له يو شمېر نورو مشرانو سره په دې هيله وتښتېد، چې بل لښکر برابر کړي. بله دا، چې په کندهار کې هغه مهال ۱۲-۱۵ زره خلک اوسېدل، خو په اصفهان کې، چې د آسيا يو لوی ښار و، پنځه سوه زره خلک اوسېدل؛ نو د اصفهان ښار له څلورو خوا و محاصره شو او افغانانو خپل څارونکي پرې ودرول. سيد الناصر، سلطان امان الله او نور غلځي مشران شاه محمود ته ورغلل او د دغې فتح مبارکي يې ورکړه. شاه محمود هوتک افغان لښکرو ته مبارکي وويله، شهيدانو ته يې دعا وکړه او خپل شهيدان يې د امانت په توګه ښخ کړل. افغانانو اصفهان ته نږدې د جلفا سيمه ونيوله؛ د ارمنيانو ميلمستيا يې په نغدو ومنله، د اصفهان محاصره يې ماته کړه او شاه محمود د ټولواک په توګه ومنل شو.

د همدې کال د اکتوبر په ۲۲ شاه محمود اصفهان ته ورسيد او امر يې وکړ، چې: د چا مال به نه اخلئ، چې دا کار به تاسو ته دوه ګټې ولري: اوږې به مو سپکې وي او پر خپل نفس به حاکميت ومومئ.

شاه محمود په ګلناباد کې پارسي لښکر تار و مار کړ، په فرخ آبا د کې د ايران صفوي بادشاه شاه حسين له وزيرانو او درباري مشرانو سره

حضور ته ورغی او مخې ته يې د تسليم شوي باد شاه په توګه ودرېد.
شاه محمود څو ګامه وړاندې ورغی او دی يې په غېږ کې ونيو او ده ته يې د اکا خطاب وکړ. هغه خپل د پاچايي تاج د شاه محمود افغان پرسر کېښود او ويې ويل، چې:
خدای تعالی له ما واخيست او تا ته يې درکړ. خپله لور يې هم ورکړه، خو شاه محمود واده درلود هغه يې ونه کړه.
اصفهان ته نژدې په (هزار جريب کې) د هالينډيانو، انګريزانو او فرانسويانو استازي د هرکلي لپاره ورته ولاړ ول او د افغان پادشاه تعظيم يې د خوليو په ليرې کولو وکړ.
د اکتوبر په ۲۵ شاه محمود هوتک په داسې حال کې د اصفهان ښار ته ننووت، چې د صفوي بادشاه تاج يې له سر څخه ايسته کړو او په شاهي قصر کې پر شاهي تخت کېښناست.
دی يو خدای پرست و، شاهي دبدبه يې نه خوښېده، دی فقير مشرب و. ده د دښمنانو په نائيد يوې ښځې ته هم ونه کتل، پر خپل نفس حاکم و. که څوک کوم وخت پر شاه محمود څېړنه کوي؛ نو تر ده مدبر هوښيار او زړور انسان نه دی ليدل شوی.
له شاهي کورنۍ، شاهزادګانو، بادشاه او ټولو سره يې ښه را شه درشه درلوده. کله، چې شهزاده طهماسب وتښتېده لښکر يې ورته وويل، چې: آيا ځوان شاهزادګان دې ووژل شي؟ هغه يې پروا ونه کړه. د طهماسب ورونه په دې نيت ووژل شول، چې خپل ورور ته ور ونه تښتي بيا به هر يو په يوه خوا کې مخالفت وکړي کله، چې شاهزادګان ووژل شول شاه محمود وژړل او خپلې متې يې په غاښ کړې.
دی ولي الله و، چې شاهي تخت يې په لومړۍ ورځ پرېښود او شاهي تاج يې له سره ايسته کړ: د چا مال يې وانه خيست او څوک يې ونه وژل

دا، چې د سیاسي غوښتنې له مخې یې پر مهال ځو تنه شاهزادګان ووژل شول؛ نو ده وژړل او خپلې متې یې په غاښ کړې. دا یو انساني حرکت و. شاه محمود قاتل نه و؛ خو، چې څوک حکومت کوي د عامو ګټو لپاره د خطر مخنیوی لړاو ډېر کوي.

شاه محمود عادل او زړه سواندی سړی و، ده له وژنې بده منله او د خدای تعالی په عبادت کې د ولي الله درجې ته رسیدلی و.

انګلیسي لیکوال ((لکهارت)) د صفویانو سقوط په نوم کتاب کښې لیکلي: تر هغې، چې د شاه محمود خپله نکاحي ښځه له کندهاره رانه غله؛ ۲۲ کلن بادشاه شاه محمود کومې ښځې ته بد ونه کتل.

شاه محمود یو افغان و، پښتون و، په پښتونولۍ ښکلی و او پښتونولي په ده ښکلې وه. ارمنیانو، زردښتیانو، کردانو او عربو له شاه محمود سره د مرستې چمتووالی وښود، خو پر دوی ایرانیانو ښه ګومان نه درلود او په هره سیمه کې یې له هغو پوښتنې کولې او ځورول به یې.

څرنګه، چې شاه محمود جګړه ګټلې وه؛ نو ده ته وویل شول. چې ایران به کرمان، سیستان او مشهد دروسپاري، خو ته ببرته لاړ شه شاه محمود یې دا ډول خبرې ونه منلې.

د ۱۷۲۲ع کال د اګست په ۱۲ یې زر تنه اسیران خوشې کړل او هر یوه ته یې څلور محمودی، چې د هغه وخت د پیسو واحد و. د لارې خرڅ ورکړ.

د شاه محمود په حکومت کې ایران هوسا او له غلیمانو ساتل شوی و. خو د صفوي دولت پخوانیو غړیو پخپلو غلچکیو عملیاتو محمود پر خپلو کړو پښېمانه کړ.

لنډه دا، چې د شاه محمود کړنې د دې وړ دي، چې د دوکتورا په سویه پرې څېړنې او کار وشي.

شاه محمود په خپله بادشاهۍ کې رياضت ته مخه کړه؛ له وچې ډوډۍ او اوبو پرته يې بل څه نه خوړل، په انسان وژنه يې ژړل، که دا افغان و او که ايرانی. پر ده خلکو ويسا درلوده، خو صفوي شوکمارو خلک نه پرېښودل.

په اصفهان کې بشپړ امنيت و، شاه محمود پخپله هره شپه پر امنيتي عسکرو گرځېده، هيچا غفلت نه شو کولای او له خپلو عسکرو سره يې غېږې نيولې.

اعتمادالدوله ورته وويل، چې د يوه باچا له شان سره نه ښايي، چې له سپاهيانو سره غېږې ونيسي.

ده په ځواب کې وويل: دا سپاهيان نه دي، زما عزيزان دي. دوی داسې دي لکه زه او زه داسې يم لکه دوی.

که پر دې څرگندونې غور وشي ببلا ببل انساني، ملي او اسلامي ارزښتونه ترې څرگنديږي. يعنې دا، چې ټول انسانان د خدای تعالی بندگان او د يوه ملت غړي دي، خو څوک کولای شي، چې د خودۍ او خان خانۍ ښامار داسې ووژني؟

ببرک خان ځدراڼ، چې د عسکري فرقې د برسپاهيان يې مېلمانه کړي وه، پخپله يې د اوبو جام په لاس ولاړ و او نورو سپاهيانو ډوډۍ خوړه؛ نو، ځکه ببرک خان شو. دا کوم زور نه غواړي، يوازې د پښتون روح پېژاندل په کار دي.

د ارواښاد قاضي عبدالظاهر خان کور ته يو شاگرد ورغی. ده د لاس اوبه ورته وروړې. شاگرد يې وويل: استاذه څه کوې؟ ده وويل: په ښوونځي کې مې شاگرد يې، خو دلته مې مېلمه يې!

دا افغان کولتور دی.

هوتکي شاه محمود به د غرمې ډوډۍ ته صفوي شاه حسین هم راغوښته او په دسترخوان به یې یوځای ډوډۍ ورسره خوړله

**غلځايي افغان ولسمشران سياست پوه هوتکي شاه اشرف (رح):**

هوتکي شاه اشرف د میر عبدالعزیز زوی او د میرویس خان نیکه وراره و. ده خپلې دیني او عسکري زده کړې د خپل نیکه د اصولو له مخې تر سره کړې وې، چې په عسکري چارو کې د یو بې ساري قوماندان په توګه وځلېده. په ډیپلوماسۍ او سیاست پوه و، د لوړ عزم او لویې مفکورې خاوند هم و. هغه مهال، چې شاه محمود د اصفهان پر تخت ناست و، هوتکي شاه اشرف د تهران والي و. د ده پلار عبدالعزیزخان د میرویس خان نیکه له وفات وروسته د کندهار مشر شو، چې کندهار هغه مهال له غزني نیولې تر هرات، پشین، غور او فاریاب پورې پراخه و. اوسنی بلوچستان د پښتنو او بلوڅو سیمې وه، چې محمد خان بلوڅ د افغان دولت (لکه خارجه وزیر و) د پارس (اوسني ایران) د سعادتمند پادشاه شاه اشرف افغان په استازیتوب د عثماني امپراتورۍ باب علی ته تللی و.

میر عبدالعزیز پر خپل مهال یو مصلحتي لیک د اصفهان دربار ته لیکلی و؛ چې د ده د مرګ لامل هم شو، خو هوتکي شاه محمود او هوتکي شاه اشرف یوځای د پارس د فتحه کولو لپاره ووتل او یوځای یې حکومت کاوه.

د ۱۷۳۵ع کال د مارچ پر ۲۲ شاه اشرف خبر شوی و، چې شاه محمود ناروغ دی؛ نو اصفهان ته د لیدنې او پوښتنې لپاره ور ورسېد او پخپله یې شاه محمود ولید، چې طبیبانو یې د رغونې خپله هڅه کوله حتا د جلفاء د مسیحیانو مذهبي مشر هم د دعا لپاره ورته راغلی و. شاه اشرف هلته و، چې درې ورځې یې تېرې شوې؛ نو شاه محمود په حق ورسید.

د هوتکي شاه محمود (رح) له وفات وروسته شاه اشرف د پښتنو له خوا په پاچاهۍ وټاکل شو او د ۱۷۳۵ع کال داپریل پر ۲۲ د پارس د باچا په توګه یې شاهي تاج پر سر کېښود.

زبردست خان (رح) د شېراز فاتح د شېراز والي و، چې اصلي نوم یې محمود و. همدغه زبردست خان د اشرف شاه په قومانده انګریزان او هالېنډیان له هرمزه وشړل او سید ال خان ناصر په دوه جبهو کښې له روس او ترک سره وجنګېد.

اشرف خان په پوره سیاسي پوهې او تدبیر پارس له ډېرو غښتلیو دښمنانو وساته لکه د روسیې د لوی پتر له امپراتورۍ او د ترکیې له عثماني امپراتورۍ. دغه راز د هرمز جزیرې یې د انګلیس له قواوو وژغورلې.

دغه هوتکي مشر پارس ته بېلا بېلا ارزښتونه ډالۍ کړي، چې غوره بېلګې یې اشرفۍ طلاوې، سل اړخیزه ودانۍ، باغونه، لارې... دي، چې ځینې یې اوس هم د اشرف په نامه یادېږي.

شاه له یوې خوا د ترکانو او روسانو سره او له بلې خوا په خراسان کښې د نادر افشار او شهزاده طهماسب سره مخ و. دغه مهال یو بل روحاني سید احمد مرعشي هم سر راپورته کړی و، خو شاه اشرف ترکان، روسان او دغه روحاني ووهل. د دغو بغاوتونو راپورته کېدو لامل دلښکري خزانې کمی او د روسیې او ترکیې پېټه لاسوهنه وه، چې نادر افشار و کولای شول سر پورته کړي.

هوتکي شاه اشرف له هرات او کندهاره مرسته وغوښته؛ هغوی ننداوه کوله. چې وروسته یې د خپلې نندارې پایله ډېره ژر ولېده، خو وخت پرې تېر و. شاه اشرف په داسې حال کې له ترکانو سره د جنګ اعلان وکړ، چې ملا زاهد له کندهاره د مرستې کولو منفي ځواب ورورساوه.

په هرات کې ابداليانو او په کندهار کښې غلځيانو پر واکمنۍ مستي کوله او ځانګړې ګټې يې د ملي ګټو په مخ کې شوې او کنه بيا به د نړۍ په تېره بيا د اسيانننۍ نقشه بله وه.

کله، چې شاه اشرف د چارو واګې په لاس کې ونيولې لومړی يې خپله کابينه جوړه کړه او لاندې شخصيتونه يې وټاکل:

*رلي خان - اعتماد الدوله
*قادر خان - قورچي باشي
*قاسم خان د بختياري (سر) حاکم- تفنګچه باشي
*محمد امين بيګ- قوالراغاسي
* محمد نشان خان- ايشک اغاسي
* ناصر خان - ديوان بيګي
* اسماعيل سلطان - ميراخور باشي
* ميرزا زفعيا - مستوفي الممالک
* ميرزا اسماعيل -د خاصه مستوفي
* ميرزا ابراهيم - د اعتماد الدولة منشي الممالک صاحب رقم
* ميرزا احمد رفعيا - د اصفهان کلانتر
* ميرزا تقي - وقايع ليکونکی
*ميزا محمد علي- د اصفهان مستوفي
* ملا زعفران - ملا باشي
* ميا صديق - قاضي القضات

د مې په ۲۸ صفوي شهزاده طهماسپ څلور زره سپاهيان برابر کړي وه او د اصفهان پر لوري ور وخوځېد ؛ ځکه اروانباد شاه محمود وفات شوی و. اشرف پر ګدۍ نوی ناست و، خو شاه اشرف شهزاده ته ماته ورکړه او د لښکرو مشر يې ونيول شو. د شهزاده دغه بېړه د دې لامل

شوه، چې يو شمېر پارسي (ايراني) شاهزاده گان او نور تر ځارنې لاندې مشران ووژل شي.

## غلځايي افغان ولسمشران له عثماني امپراتورۍ سره د هوتکي شاه اشرف جگړه:

د عثماني ترکيې او لوی پتر ترمشرۍ لاندې روسيې ترکيې دغه شېبه خپلو هځو ته وړ وگڼله، چې د پارس يوه برخه ونيسي، خو هوتکي شاه اشرف له هغو حدودو هم ورواوښت، چې د دوی ترمنځ منل شوې وې.

په ۱۷۲۵ع کال کې هلته ملا زعفران او ملا باشي دغوره ادارې، زړه سوي، عدل او مهربانۍ لرونکي وه او د دولت چارې يې د حق، قناعت او عدالت له مخې سرته رسولې.

الماس خان يو بل افغان لوړ پوړی چارواکی و، چې په پارس کې د افغان دولت پر مهال وفات شو او افغانان د ده په مړينه ډېر خواشيني وه.

د ايران پخوانی پادشاه صفوي شاه حسين او اعتماد الدوله، چې د شاه محمود افغان د حکومت په پېر کې بنديان ول، د الماس خان له ښې وضعې يې خوشحالي څرگندوله

زبردست خان او سيد ال خان ناصر دواړو له قم، ساوه او تهران څخه د طهماسب ميرزا پلويان وابستل او امنيت يې ټينگ کړ.

هوتکي شاه محمود افغان له ارمنيانو، مانيانو، يهوديانو او نورو مذهبي ډلو څخه د جزيې اخستنه بخښلې وه او ملا زعفران همدغه کار د شاه اشرف په وخت کښې هم منلی و او چا نه يې د جزيې په نامه څه نه اخستل.

له عثماني ترکيې او روسيې سره د جگړو ورځني اطلاعات او د خلکو حال احوال پخپله ملا زعفران او ملا باشي په پوره ميړانه

اخيسته او ځوک يې نه پرېښودل، چې د چا مال او ځان ته ضرر ورسوي. د ناموس د ساتلو سوال نه و؛ ځکه د واحد فرد ناموس ته هم صدمه نه وه رسېدلې.

کله، چې شاه اشرف سيد احمد ته ماته ورکړه؛ د يوې اوونۍ لپاره له اصفهان څخه د باندې د هوساوخت تېروني په نيت لاړ.

د ۱۷۲۶ ع کال د جون په مياشت کښې، چې ببرته راغی؛ د عثماني ترکانو له لوري ورته خبر راغی او وويل شول، چې يا د ايران پخواني پادشاه سلطان حسين خوشې کړه او د بادشاه په توګه يې ومنه او يا جګړې ته چمتو شه. ورپسې د ترکانو يو استازی راغی او ويې ويل، چې: عبدالباقي خان د کرمانشاه حاکم او کورنۍ يې خوشې کړئ.

شاه اشرف له دې خبرو په قهر شو او د عبدالباقي خان د کورنۍ درې تنه بوډاګان يې ووژل او د هغوی سرونه يې د ترک امپراتور ته واستول او دغه پېغام يې هم ورکړ:

((زه، چې هر ډول لازم وبولم؛ له خپل رعيت سره هماغسې کوم، د پرديو مداخلې ته په کې اړتيا نه لرم)).

همدا لامل و، چې هوتکي شاه اشرف له عثماني ترکيې سره د جګړې چارې سمې کړې.

د عثماني پادشاه بل پېغام دلاندې ټکو په لړلو وررورسيد:

((شاه اشرف ته بويه، چې عثماني سلطان ته د تسليمۍ لپاره پخپله احمد بادشاه ته لاړ شي. سلطان به تا د يوه سني مذهبه په توګه د ايران د والي په توګه وپېژني: په ايران کې دې، چې هر څومره ځايونه نيولي يا يې له دې وروسته نيسې. هغه به ستا وبولو. ته بايد بې له ځنډه تسليم شې: خطبه دې د عثماني سلطان په نوم وويل شي او هم دې د هغه په نوم سکه ووهل شي)).

شاه اشرف افغان عثماني سلطان ته داسې پېغام واستاوه:
((که عثماني سلطان نه غواړي؛ هغه معاهدې، چې له صفوي پادشاه سره شوي، په رسميت وپېژني، زه به له خپلو سلطاني امتيازاتو تېر نه شم او هغه سيمې، چې اوس اوس مو نيولي هغه به پخپلو وينو ساتم)).
د ۱۷۲۲ ع کال د نوامبر پر اتمه د افغان او عثماني ترکانو ترمنځ جګړه ونښته.
ترکي احمد پادشاه، والي او جنرال دوه سوه زره عسکر درلودل، خو شاه اشرف څلوېښت زره عسکر برابر کړي وه، چې د ترک عسکر يې څلور برابره ول.
په دې جګړه کې د شاه اشرف عسکرو د ترکانو دېرش زره عسکر مړه کړل؛ د حويزه ولايت، ۴۲ توپونه، درې بيرغه، بنه ډېره وسله يې ترې ونيوله او ترکانو ترې سخته ماته وخوړه.
افغان سپاهيان ډېر لږ مړه شوي وه. په پای کې ترکانو هوتکي شاه اشرف په رسميت وپېژاند او د سولې يو تړون ورسره لاسليک شو؛ د ترکانو سفيربې د راشد پادشا په نوم د اشرف خان دربار ته ولېږه او د افغانانو لخوا احمد خان بلوڅ د سفير په توګه استانبول ته واستول شو.
د ۱۷۲۲ ع کال د نوامبر پر اتلسمه د اصفهان خلک او د ايران د نورو برخو ګڼ شمېر د بريالي سوبمن پادشاه هوتکي افغان شاه اشرف د هرکلي لپاره ووتل او د هغه اتل افغان هرکلی په بې ساري توګه سرته ورسېد.
کله، چې هوتکي شاه اشرف د ترکيې امپراتورۍ ته پوره سبق ورکړ؛ روسان په شمالي ايران کې رامخکې شول، چې هو تکي شاه اشرف ته د دوی وهل هم اړين ښکاره شول.

## د افغان او روس جګړه:

شاه اشرف ترکانو ته وویل: ((که چمتو نه یاست، چې له صفوي امپراتورۍ سره شوې معاهدې ومنئ، زه به ټولې هغه سیمې، چې نیولې مو دي؛ خوشې نه کړم)). شاه اشراف ایران خپل وطن باله؛ دی یې بادشاه و، د ده خپله خاوره او خپل یې رعیت و. ساتنه، آبادي او امنیت یې دنده وه؛ ښکېلاکګر نه ؤ او نه زبېښناکګر و.

د آزاد خان سلیمانخېل، بادشاه محمود افغان، شاه اشرف افغان او احمد شاه بابا د خپلو پخوانیو نومیالیو په څېر د اوسني ایران، افغانستان او هند بادشاهي یوه بلله.

د ۱۷۲۹ ع کال د فبرورۍ په میاشت کې، چې د اشرف خان ډېر معتمد او درانه سپه سالار سید ال خان ناصر او د روسیې د سرلښکر واسیلي لواشف ترمنځ یو تړون لاسلیک شوی، چې لس مادې لري د دغه قرارداد په دوه یمه ماده کښې داسې راغلي ((امپراتور روسیه از سوی دولت معظم خود اراده کرده است که ایالت استراباد و مازندان را که از ایالات ساحلی است، بمناسبت دوستی دیرینه که امپراتور روسیه نسبت به ایران دارد، به ایران ورگذار کند. اما بدین شرط حتمی و استوار است که این ایالات به هیچ وجه به دولت های دیگر واگذار نه شود)). یعنې د روسیې امپراتور د خپل معظم دولت له لوري اراده لري، چې د استرآباد او مازندان ایالتونه، چې ساحلي ایالتونه دي، د پخوانۍ دوستۍ له لامله، چې روسیه یې له ایران سره لري، ایران ته پرېږدي. خو په دې شرط، چې دا ایالت نورو دولتونو ته پرې نښودل شي.

د همدغه تړون په درېیمه ماده کښې راغلي ((د سمندر کینه خوا به د روسیې په تصرف کې وي او ښۍ خوا به د اصفهان د سعادتمند

بادشاه (اعلیحضرت شاه اشرف) چې په ایران کښې د برې ځمکې لرې.
په تصرف او تملک کې وي)).
د ۱۷۳۹ع کال د فبروري په ۱۴ د روم په سیمه کې افغان لښکرې د
سیدال خان ناسر پرسر لښکرې له روسي سره مخامخ شوې؛ روسي
لښکرو ماته وخوړه. روسي سر لښکر مارشال اوزلو ته امر وشو، چې
له افغان سرلښکري سره خبرې وکړي. سیدال خان ناسر خبرو ته
کښېناست، روسي سرلښکر وویل:
پوهېږئ، چې له چا سره جنګېږئ؟
سیدال خان ناسر: هو!
اوزلو: پوهېږئ، چې دوه یم پتر څومره لښکر او توپونه لري؟
سیدال خان ناسر: نه!
اوزلو: مونږ کولای شو دلته دوه سوه زره عسکر راولو!
سیدال خان ناسر: پر خپلو بریتو لاس تېر کړ او ویې ویل: اوس ورځه
استراحت وکړه، سبا به ستا له دوه سوه زرو لښکرو سره ګورو.
اوزلو: جنګ کوئ؟
سیدال خان ناسر: شاه اشرف افغان زه د جنګ لپاره رالېږلی یم. که
پنځه سوه زره لښکر هم وي، زه جنګ کوم.
روسان حاضر شول، چې سوله وکړي؛ شاه اشرف افغان د عثماني
خلافت او روسي امپراتورۍ له خوا په رسمیت وپېژاندل شو او د
سولې تړونونه لاسلیک شول.
دا وه د دوه جګړو پایله، چې د روسیې تزاري او د ترکیې عثماني
امپراتوریو په ډېره لږه موده کښې ماته وخوړه.
(۲۶۲) کال وروسته ترکیې پر ۱۹۹۹ع کال د افغانستان اسلامي امارت
(ا.ا.ا) له مخالفینو سره ودرېده او له ازبک ملېشو سره یې د سیاسي،

پوځي، فرهنګي روزنيزو چارو د تر سره کولو مرستې رسمي اعلان کړې.

ايران او روسيه د افغانستان په اړه ګډه پاليسي رهبري کوي.

پاکستان هم د انګلستان او امريکې امرونه مني او پلي کړي يې دي.

پښتانه په اوسني وخت کښې د دغو ښو له سياسته فارغ دي؛ ځکه افغان ملي سياست نشته روسيه، هند، ايران، پاکستان او ترکيه په بېلابېلو ښو په افغانستان کې د طالب حکومت له مخالفو سره ولاړ دي.

دا هغه ځمکنی سياست دی، چې له اتلسمې پېړۍ سره يو شان دی.

کله، چې هوتکي شاه اشرف د ۱۷۲۵ ع کال د اپريل پر ۲۲ د اصفهان پر تخت کښېناست؛ د ده د پادشاهۍ په وياړ په اصفهان، کاسان، مشهد، استرآباد، قزوين، تبريز، شماخي او رشت کښې د ده په نامه سکه ووهل شوه. په دغه وخت کښې دی شپږويشت کلن و. خو يو ډېر زړور سړی و.

هوتکي شاه اشرف سياست او اداري چارو پخپله رهبري کاوه او پر خلکو هم ګران و. د ده تر بادشاهۍ د مخه د فرانسې په دلالۍ، روسيې او عثماني ترکيې د ايران پر ويش يو تړون لاسليک کړی و او سرحدي سيمې يې خپلې ګڼلې. يعنې په ايران کښې يې د شهزاده طهماسب هلې ځلې څارلې، خو شمال ته روسان او غرب ته ترکان ننوتي وه او دی دې ته اړ و، چې له ټولو سره مقابلې ته چمتو شي.

سره له دې، چې د هوتکي شاه محمود اړيکې له نظر بند شاه حسين صفوي سره ښې وې؛ نو شاه اشرف يې هم ډېر مراعت کاوه.

شاه اشرف افغان صفوي نظربند دي پاچا ته وويل: ستا زوی شهزاده طهماسب بايد له خپل ياغيتوب ه لاس واخلي، خو زه غواړم له هغه سره وګورم او تاسې ټول په ايران کښې په ښه توګه ژوند کولای شئ.

هوتکي شاه اشرف وويل: له طهماسب سره دوه په دوه غواړم د قم او تهران ترمنځ په يوه ځای کښې وګورم. ځينو ايرانيانو شهزاده طهماسب ته وويل، چې: دا کار ونه کړې؛ ځکه، چې تا سره لوی لښکر دی.
شاه اشرف پخپله د طهماسب ليدو ته وخوځېد، خو د خواجه عبدالعظيم زيارت په سيمه کې د طهماسب لښکرو پرهوتکي شاه اشرف بريد وکړ. په دې جګړه کې شهزاده ماته وخوړه او مازندران ته وتښتېد.
روسانو او ترکانو د ايران يوه، يوه برخه نيولې وه او ترکانو غوښتل، چې د ختيځ له لوري د ايران نورې برخې هم ونيسي. اشرف ترکيې ته د سولې وړانديز وکړ. هغه دا و، چې اسلامي ډېر هېوادونه او عربستان د دوی په امپراتورۍ کښې ګډ شوي وه. عثماني خليفه، چې خادم الحرمين شريفين هم و؛ نو هوتکي شاه اشرف د يوه مسلمان په توګه نه غوښتل، چې له صفوي پاچا يا عثماني خليفه سره بده وضع وکړي؛ نو عثماني دربار ته يې خپل يو استازی عبدالعزيز نومی واستاوه، خو عثماني دربار له روسيې سره د ايران د تقسيم تړون لاسليک کړی و، کولی يې نه شول، چې د هوتکي شاه اشرف له استازي سره رسمي خبرې وکړي
شاه اشرف افغان د نولسو تنو افغان عالمانو پرلاسليک درې پېغامه وراستولي وه: لومړی ليک د عثماني خليفه په نامه، دوه يم د ترکيې د صدراعظم (اعتمادالدوله) په نامه، درېيم ليک د عثماني دولت د لوی مفتي عبدالله په نامه
دوی يې ډېرو مسايلو ته رابللي وه، چې: آيا تاسې له يو کفار روس او ايراني قزلباش سره د يوه اسلامي خلافت دوستي غواړئ او که له يو سني مذهبه غښتلي بادشاه سره؟

استازی د ۱۷۲۲ع کال د جون پر ۲ استانبول ته ورسېد، چې نه یوازې یې له یو داسې تردد او دوه زړه توب سره مخ کړل، بلکې اړ شول، چې د عربستان د مکې معظمې او مدینې منورې له مفتیانو فتوی وغواړي.

## د افغان او روس جګړه:

په ۱۷۲۴ع کال کې روسانو او ترکانو د ایران د وېشلو خبره پخه کړې وه؛ خو نه پوهېدل، چې څه وکړي. په دې وخت کښې احمد پادشاه د ترکانو مشر په همدان کښې و، چې د یوه جنرال په توګه یې هغه نیولی و؛ چاخبر ورکړ، چې د شاه اشرف مذهبي مبلغین د ترکانو په صفونو کښې ننوتلي او وایي، چې: سني مذهب باید له سني مذهبه سره جګړه ونه کړي. له عسکري فرقو نیولې تر باب عالي (دربار) پورې سربداله شول. د شاه اشرف تبلیغات، نوم او سکې (اشرفۍ) په افغانستان، ایران، عثماني ترکیې او زار روس کښې یوه لویه هنګامه او ځوړ راپورته کړی و.

د عثماني ترکیې د مفتي عبدالله په پوښتنو کې یوه پوښتنه دا وه، چې: آیا د عثماني خلیفة المسلمین په شتون کې بل خلیفه هم درېدلای شي؟ غوښتنه یې د شاه اشرف ځواب نه و.

ترکانو پرې برید ته هلې ځلې پیل کړې.

نادر افشار، چې په خټه ترکمن وا او قبیله یې د افشارو په نوم یادېدله د تاریخ یو ډېر بې رحمه او د کلک زړه څښتن سړی و.

د شاه اشرف لښکرې له روس، ترک او طهماسب سره په جګړو کښې ستړې شوې وې، د هرات له ابدالیانو او د کندهار له غلځیانو یې مرسته وغوښته، خو د هغو مرسته ور سره ونه شوه او شاه اشرف خپلو غلځیو د پوره بېوسۍ پر ورځ وواژه. [شاه اشرف، چې په شهادت

ورسېد؛ نو د ترکانو عقل سرته ورغی.] نادر افشار، چې د شاه اشرف له لوري هوسا شو، د هرات پر ابدالیانو ورغی. دغه وخت کې شاه حسین هوتک د کندهار بادشاه، د شاه محمود وروراو د میرویس خان نیکه زوی، د هرات ابدالیانو د مرستې لپاره جنګیالي ورولېږل.
[ترکانو، ابدالیانو او غلځیانو؛ شاه اشرف د یو زړور او پوخ سیاستمدار په توګه وروسته وپېژاند، خو د دې پېژندنې له ګټې اوس بې برخې شوي وه.
په افغان ملي تاریخ کې دا تېروتنې باید بیانه وای شوې، خو له پارسي، مغولي او ترکي مینډو زېږېدلیو سدوزو او محمدزو پر خپلمنځیو شخړو افغان امپراتوري برباد کړه. دغو کورنیو د اتلسمې پېړۍ په وروستیو لسیزو کې له ملي ارزښتونو سره د تربګنیو لوبه پیل کړې، نولسمې پېړۍ ته یې راغځولې، خو د شلمې پېړۍ د دوه یمې لسیزې تر وروستیو کلونو د ملي یووالي مزی ترې بیخي وشلېده. د یوې لسیزې په بهیر کښې د وزیر بابا محمد ګل خان مومند په مشرتابه د هېواد سترو شخصیتونو د ملي یووالي لپاره عملي –فرهنګي، علمي، سیاسي او ادبي هلې ځلې وکړې. چې د ډیموکراسۍ لسیزې هر څه برباد کړل او پړاو پر پړاو یې دا دی د یوویشتمې پېړۍ لومړۍ لسیزه هم تر اغېز لاندې راوستې. چې په روانه پېړۍ کې به که خدای کول راپورته کېدونکی خوار نسل په لومړي پړاو کښې دې تاریخي نیمګړتیا ته پاملرنه وکړي (د تاریخ د دې بدې ورځې له تورتکي دې هر افغان او مسلمان پښتون پند واخلي).
کله. چې هوتکي شاه اشرف غوښتل د کلات پر لوري ورتېر شي او خپل غلځي هوتک او نور پښتانه راټول کړي؛ د کندهار شوراوک ولسوالۍ ته نږدې یو پښتون ابراهیم نومې ولید

د کندهار د مغرور پاچا شاه حسین هوتک کسانو پرې برید وکړ؛ ابراهیم ټوپک ورته ونیو او د ټوپک پلته یې ولګوله اشرف له توري سره پرې وروغورځېد د یوې ثانیې په توپیر کښې یې د ټوپک ګولۍ په ټټر ولګېده او ټپي شو.

د ایران د تاریخ په ټولنه کښې هغه رسمي لیکونه او اسناد خوندي دي، چې شاه اشرف افغان د ترکیې او روسیې پادشاهانو ته لیکلي دي، چې یو سند یې داسې دی: ((اشرف شاه اعلی الله لواء دولته فی الافاق فی اریکة الودود الوفاق سمی خلیل الرحمن آدام الله تعالی اقباله ما دار مدار الدوران)). یعني الله تعالی دې د اشرف شاه بیرغ په ټول افاق لوړ کړي، چې پر کرسۍ د دوستۍ له موافقت سره په خلیل الرحمن مسمی دی. الله تعالی دې د ده بخت با دوامه ولري، چې د زماني دار و مدار په دوران کښې وي.

د ده توره او میړانه؛ څکه د ډاډ وړ ده، چې په ۱۷۲۲ع – ۱۷۲۷ع کښې یې دوه امپراتورۍ (روسي او عثماني) یې په شا وتمبولې. په داسې حال کښې، چې د هرات ابدالي حکومت او د کندهار غلځي حکومت ده ته د مرستې په باب منفي جواب ورکړ.

شاه اشرف له حیا ډک سړی، اوڅار سیاستمدار او زړور لاربنود و. ده له روسانو څخه د خپلې هغې معاهدې پوښتنه کړې. چې د سید ال ناصر خان په استازیتوب په رشت کې لاسلیک شوې وه. دغه راز یې د ایران صفوي شاهزاده شاه طهماسب ثاني هم پوښتلی، چې د پاچاهۍ اعلان یې کړی و او له روسانو سره یې یوه معاهده کړې وه.

د ۱۷۲۹ع کال په فبرورۍ کې د شاه اشرف افغان او روسي پتر تر منځ یو قرارداد د سید ال ناسر په استازیتوب او توره په لاندې توګه لاسلیک شوی:

((بنام ایزد متعال و بخشنده و مهربان موافقت نامهٔ ذیل اعلام می شود: چون اعلیحضرت امپراتور پتر دوم پادشاه توانای سراسر روسیه وغیره وغیره که در دریای خزر و ایالات ساحلی دریا با طرف دیگریعنی پادشاه سعادتمند اصفهان در ایران اعلیحضرت شاه اشرف افغان خداوندگار اراضی بسیار وغیره وغیره همسایه است به ارادهٔ خداوند متعال اتحاد مقدس در مورد مسایل نظامی و جلوگیری از به کار بردن اسلحه بر ضد یکدیگر برقرار کزده است. نمایندگان تعیین شده از سوی اعلیحضرت امپراتور پتر دوم پادشاه توانای سراسر روسیه وغیره وغیره، عالی جناب محترم سرلشکر واسلی لواشف دارندهٔ نشان الکساندر فرمان ده کل سفاهیان روسیه درگیلان و فرمانروای ایالات ساحلی بحر خزر در دارالمرز و از سوی پادشاه بسیار سعادتمند اصفهان و مالک اراضی وغیره وغیره سپه سالار بسیار معتمد و بسیار محترم محمد سیدال خان ناصر بیگلر بیگی و محترم ترین عالی جنابان مستوفی عالی خاصه:

میرزا محمد اسمعیل و عمر سلطان و حاجی ابراهیم که درمیان دربار های معظم و دولتهای کشور معظم و اتباع آنها مقتضا اتحاد حقیقی و دائمی را مفید دانسته اند، این عهدنامهٔ دوستی ابدی شامل مواد ذیل منعقد میگردد )).

د دغه تړون دوه یمه ماده داسې ده: پښتو ژباړه - د روسیې اعلیحضرت امپراتور له خپل معظم دولت اراده کړې، چې د استرآباد، مازندران، ایالتونه مو ساحلي ایالتونه دي. دغه ایالتونه د پخوانۍ دوستۍ له مخې، چې د روسیې امپراتورۍ له ایران سره لري، ایران ته ور پرېږدي

دلته ثرگند یږي، چې هغه ولایتونه، چې دوه یم شاه طهماسب په ۱۷۲۳ع کال کښې روسیې ته ورکړي وه، شاه اشرف بېرته ونیول او کوم نوی سرحد، چې د افغان پارسي دولت او روسیې ترمنځ وټاکل شو لنډیز یې داسې دی:

((از سمت چپ به طرف دریا همه نواحی سابق الذکر با همه متعلقات آنها در تصرف اعلیحضرت امپراتور سراسر اولیه والی الابد در تملک امپراتوری روسیه خواهد بود و از سمت راست در داخل اراضی از جاهای که بادشاه سعادتمند اصفهان در ایران و مالک بسیاری از اراضی در اختیار خو دارد در تملک دربار اصفهان خواهد بود تا تصویب این قرارداد صلح و اتحاد مقدس از جانب پادشاه سعادتمند اصفهان و مالک بسیار از سرزمین ها هیچکس به هیچگونه حق ورود بدان نواحی و ارتباط کتبی با انجا را نخواهد داشت) یعنې له کینې خوا د سیند له لوري ټولې خواوې، چې مخکې ذکر شوي د هغو له ټولو متعلقاتو سره د اعلیحضرت امپراتور د ټولې روسیې تر ابده به په تملک او تصرف کې وي او ښي لوري ته په دننه ځمکه کې له هغو ځایو، چې په ایران کې د اصفهان سعادتمند پاچا او د نورو ډېرو ځمکو د ملکیت اختیار لري د اصفهان د دربار په تملک کې به وي، چې د دې قرارداد تصویب؛ چې د صلح او مقدس اتحاد قرارداد دی د اصفهان د سعادتمند پاچا او د ډېرو ځمکو له مالک سره هیڅوک په هیڅ ډول هغو نواحیو ته د ورننوتلو او کتبي ارتباط حق نه لري

دغه تړون لس مادې لري، چې ټول د شاه اشرف افغان خپلواکي، ویاړ او درناوی ښیي.

شاه اشرف یو قوي او پیاوړی ډیپلومات و. د ده سر لښکر سپه سالار سیدال ناسر یو زړور جنرال و، چې په ډار نه و خبر. کوم قراردادونه.

چې ده امضاء کړي د افغانستان د بهرنیو چارو په وزارت کښې شایي موجود وي له هغو دې د دغه وزارتچارواکي ډیپلوماسي زده کړي سپین سفیر محمد خان بلوڅ په ۱۷۲۸ ع کال د شاه اشرف له خوا استانبول ته واستول شو. دغه وخت عثماني امپراتورۍ افغان پاچا ته دومره په درانه نظر کتل، چې له خپلو تېرو کړو پوره پښېمانه وه؛ ځکه د اسلام او سنت د درناوي له مخې هرکي اشرف خان د دوی ټولې ځمکې بېرته خوشې کړې، توپونه او بیرغونه، اسیران او ټول جنګي سامان یې، چې له ترکانو نیولی و، بېرته ورکړل؛ نو د ترکیې ملت فکر کاوه، چې مېړانه او مسلماني داسې وي، چې هوتکي شاه اشرف وکړه. کله، چې سفیر محمد خان بلوڅ د ترکیې پر لوري وخوځېد، د عثماني امپراتورۍ له ... د سفیر لارې، کورونه او ودانۍ سپین رنګ شول او د یوه پاچ په توګه یې د هغه هرکلی وکړ. ترکانو محمد خان بلوڅ (خان سیواسي) یعنې سپین خان یا سپین سفیر وباله[ حداد((فرهاد )) قدرتالله- د افغان ملي تاریخ ۹۱ مخ]

## نادر افشار:

نادر افشار ... قلو مغل دی، چې د یو پوستین ګنډونکي په بېوزلې کورنۍ کښې زېږېدلی؛ پلار یې مقلي نومولی او سني مذهبه لوی شو. کله، چې د میرویس نیکه کورنۍ ماته وخوړه او نادر افشار د روسانو او نورو سیمه ییزو ملګرو په ملاتړ حکومتي واک ترلاسه کړ، خو پر پښتنو یې د واکمنۍ د ټینګولو لپاره احمد خان ابدالي (احمد شاه بابا) د خپل ګارډ مشر کړ. آزاد خان سلیمانخیل، محمد خان بلوڅ او ډېرو نورو ځوانانو ته یې ولایتي واکمنۍ وسپارلې. په دې ډول یې خپل دولت د پښتنو، ازبکو او بلوڅو پر استازیو ټینګ ... تلی و.

ده د بي بي زينبو (د ميرويس نيکه لور) د پلو په درناوي کې د کندهار بنديان خوشې کړل؛ سيدال ناصر يې، چې د کلات په کلا کې ونيو. هغه ته يې وويل: ته يو توريالی سړی يې! دی يې مړ نه کړ، خو سترګې يې ترې ووېستې او له خپل قوم سره يې د کابل په شکردره کې وساته نادر افشار په کرمان کې دومره سترګې وايستلې، چې کرمان دړندو ښار وبلل شو. له شيعه علماوو سره به يې بحث کاوه بيا به يې بنديانول.

دا دي د بي بي زينبو څو سانديې:

که څاڅي له شنه زړه مې وينې څاڅي
اصفهان پرون زمونږ و نن نادر ته نر او ښځې په کې ناڅي
نادر وښکې د سيدال ميړنـي سترګې
له زمريانو شوې خالي د وطن درګې
که زور دی د خدای له لويه زوره
چا ليدلې زينبو وه اوس زخميانو ته له کوره وځي سرتوره

نادر افشار، چې پارس (اوسنی ايران) سره يو کړ؛ نو شهزاده طهماسب يې له سلطنته وغورځاوه. د ايران تاج يې پخپل سر کېښود او د مغان په دښته کې يې ايراني علماوو او مشرانو ته خپل مرام او موخې داسې څرګندې کړې:

د وثيقې متن: ((کله، چې شاه اسمعيل صفوي باچا شو؛ د پارس (ايران) هېوادونه يې، چې د سنت پېروان ول، له سنته خلاص کړل او د خپل دولت د ټينګولو لپاره يې هڅه وکړه، چې بيا د سني مذهب هيله څرګنده نه کړي ده د خپل دولت بنسټ پر نسب (رټلو او کنځلو) او رفض (پېښودلو، ردولو او نه منلو) کېښود. دغه راز به ده پرته له حضرت علي (رض) په نورو ټولو يارانو بد ويل، چې مسلمانان د کفر مقابله ونه کړي او يو له بله سره د مذهب په نامه وخوري

دا کارد دې سبب شو ، چې سګزي، شيروان، افغانستان، عراق، پارس، اصفهان، سيستان ملک محمود ، خراسان، روميه (ترکان) آذربايجان، همدان، کرمان شاه، روسيه، دربند او ګيلان ونيسي. د اوسني ايران هېواد او خلک تر پښو لاندې شول او هر څه يې، چې وليدل د صفوي د باغ ګلان و، چې ورسره د هغوی سلسله هم ختمه شوه ،خو دولس امامان به وي، سب، رفض او نفاق به نه وي. وروسته له دې به د حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمر او حضرت عثمان نومونه پرمحرابونو ليکل کيږي (شوال المکرم ۱۱۲۸ ه.ق).

نادر افشار دا امر هم ورکړ، چې سني او شيعه به يوه کلمه وايي. نادر افشار د اسلامي وحدت وثيقه پر ټولو اسلامي عالمانو امضاء کړه. بخارا، پارس، ترکيه، افغانستان، عربستان، کربلا... چې يو اسلام دی خدای تعالی، حضرت پيغمبر محمد (ص) څلور ياران به شريک وي، څلور مذهبه به د منلو وړ وي.

د افغانستان د علماوو نومونه دا دي، چې پر وثيقه يې لاسليک شته ! ملا حمزه شيخ الاسلام افغان مهر، د جمشيد ملا امام افغان مهر، د افغان مدرس علي احمد مهر او د ملا محمد امين افغان مهر.

کوم مذهبي پروګرام، چې نادر درلود ، د افغانانو خوښ و . له دې بابته يې په ايران کې ورسره د ولايتونو مشري کوله

## د ميرويس خان کشر زوی شاه محمد حسين خان :

شاه حسين د ميرويس نيکه کشر زوی و ، چې په کندهار کښې زېږېدلی او خپل تعليمات يې سرته رسولي دي لکه، چې شاه محمود او شاه اشرف به له کندهاره د باندې په چارو بوخت ول شاه حسين به د کندهار چارې پرمخ بيولې. له دې امله د هغو له وفات وروسته د

کندهار پاچا شو. له دې امله نادر افشار یو لیک د کندهار د پاچا شاه حسین هوتک په نوم لیکلی. له متن یې ښکاري، چې شاه حسین د هرات ابدالیانو ته ځوک استولي چې له نادر افشار سره جګړه ونه کړئ ذوالفقار ابدالي د احمد شاه بابا ورور ابراهیم افشار ته ماتې ورکړه او مشهد یې محاصره کړ، نادر افشار دغه وخت د ایران په شمال لویدیز کښې و بیا چې نادر راغی الله یار خان هرات ته راغی ذوالفقار خان او احمد خان دواړه کندهار ته راغلل او هلته شاه حسین بندیان کړل او کله، چې نادر افشار کندهار ته راورسید سید شاه حسین لس میاشتې مقاومت وکړ او په نره وجنګېد.

شاه حسین ته د نادر افشار لیک داسې و؛ علي جاه محمد حسین خان بالقابه دې پوه شي، چې ابدالیانو ته دې کوم سړی استولی و عقلمن کار و. د اصلاح او رفع نزاع لپاره ښه و او مخکې له ورود له دعوت کار واخیستل شو، داخل مې بیا خو تنه هرات ته ورولېږل، چې کوم دلیل ورته پاتې نه وي. خو داسې ښکاري، چې کوم اثر یې پرې ونه کړ؛ نو جګړه ورسره پکار ده. زما او ستا خبره یې ونه منله او س به جګړه پېل کړو.

## افغان آزاد خان غلځي په اصفهان کښې سکه ووهله :

آزاد خان افغان په آذربائیجان کښې، چې د ایران شمال غرب کښې دی حکومت کاوه. آزاد خان پر اصفهان ورغی هغه یې تصرف کړ او په کال **۱۷۵۵** ع کال کښې یې په اصفهان کښې سکه ووهله. چې د اصفهان په موزیم کښې موجود دي.

دغه وخت کښې، چې آزاد خان غلځی په اصفهان کښې د یوه افغان په نامه ځان بادشاه کړ او نوی یې خپل پروګرام ښکاره کړی و. احمد شاه

بابا له نیشاپوره تر ډیلي پورې او له آمو نه د عثمان تر خلیج پورې افغاني دولت جوړ کړی و. آزاد خان اصفهان ته رسیدلی و، نږدې و دوه افغاني دولتونه سره یو شي او لا پراخ دولت جوړ شوی وای.
د آزاد خان پلان دا و، چې ایران، افغانستان، بلوچستان به ټول په یوه سیاسي واحد کښې په عدل او آرامۍ ژوند کوي که دغه وخت احمد شاه بابا په افغانستان او آزاد خان، چې په آذربايیجان کې و اصفهان یې نیولی وای؛ نو له ترکیې نه تر بنګاله به ټوله یوه حوزه وه. احمد شاه بابا د افغانستان د طبیعي حدودو په ساتلو کښې هڅه کوله او د آزاد خان پلان تر هغه پراخ و؛ ځکه، چې کله ده خپل زیاتېدونکی قدرت ولید. په ښکاره یې د عراق، خراسان او حتا افغانستان نیول محمود خان بلوڅ اعلان کړل، چې د ده په عقیده سربېره پر ایران د افغانستان باچا هم باید غلځی وي.
محمد خان بلوڅ د شاه اشرف دولتي کارو کښې وارد شو او په نمایندګۍ عثماني دربار ته لاړ. نادر افشار غوښتل د ده له استعداد څخه استفاده وکړي؛ نو ده سره یې د ملګرتیا هیله وکړه. محمود خان، چې حالات ناسم ولیدل د ده هیله یې ومنله او د (کوه کیلو) حکومت یې ومانه. کله، چې نادر افشار د بغداد په لوري خوځېده محمد خان ته یې وویل، چې د ده لپاره لښکر ټول کړي. محمد خان د لښکر له ټولېدلو سره سره خلکو سره داسې سلوک کاوه، چې ټول خلک د ده پلویان کېدل خلکو. چې د ده مقایسه له نادر افشار سره کوله: نو خلک په ده خوښ و، چې محمد خان دې د دوی واکمن وي. د ایران خلکو له ده غوښتل، چې دوی د نادر له ظلم خلاص کړي. محمد خان، چې د نادر حال خراب ولید له خپلو لښکري مشرانو سره جرګه شو او د خپلواکۍ اعلان یې وکړ. په بهبان (د ځای نوم دی) کښې د نازیانو

لښکرې او عام خلک ورسره یوځای شول او محمد خان یې د ایران د واکمن په توګه ومانه د سوستر او د ایران د نورو برخو خلک محمد خان سره یوځای شول، د حویزه خلک هم ورسره ودرېدل، کله چې نادر افشار حالات داسې ولیدل له یوه درانه لښکر سره د محمد خان مقابلې ته راووت، محمد خان غزنی سیمې ونیولې او یوې سختې جګړې ته چمتو شو، کله، چې د نادر لښکرو کښې اروپایي توپ ویشتونکي ماهران ډېر وو؛ نو محمد خان د خپلو لښکرو له یوې برخې سره د هرمز خوا ته لاړ، نادر شیراز ته راغی. وکیل جلایر یې د محمد خان مقابلې ته واستاوه. محمد خان هوله او د قیس جزیره ترلاسه کړل. په داسې حال کښې، چې د محمد خان کارمخ په وړاندې روان و زیات خلک یې پلویان و، خو شیخ علاق عرب، چې د نادر په مقابل کښې یې جنګونه کړي و او بیا محمد خان سره یوځای شوی و، په پټه یې له نادر سره جوړه وکړه او د محمد خان د ناکامۍ موجبات یې برابر کړل؛ نو کله، چې محمد خان سختې جګړې وکړې د شیخ علاق د خیانت په وجه ونیول شو او لکه د سیدال ناسر په څېر یې د محمد خان سترګې هم ړندې کړې. د محمد خان له پاڅون سره پرته له خراسان په ټول ایران کښې اله ګوله شوه، چې نادر افشار بیا یوه موده محمد خان له پلویانو سره په جګړه بوخت و. وروسته له هغه نادر ډېر کلي وران کړل خلک یې ووژل. د نادر لپاره یواځینی ځای مشهد او نیشاپور و، چې دی په کې اوسېده. د ایران زیاته برخه هم په افغاني مشرانو لکه آزاد خان او محمد خان پسې ګرځېدل سیدال هم د نادر په لاس کېووت ړوند یې کړ. شکردرې ته یې واستاوه. عزیزانو سره مینشت او هلته وفات شو. نادر افشار لویه امپراتوري جوړه کړه، خو له هند تر ایران خلک د ده له ظلم تنګ وو آخر د څمکنیو میا عمر صاحب

ته ورغلل، چې دعا وکړي خدای تعالی دوی له دې مصیبته خلاص کړي هغه مبارک په لاهور کښې دعا وکړه، خاص او عام خلکو ته يې د عادل باچا راتلو زیری ورکړ، چې په لنډ وخت کښې احمد شاه بابا راغی.

کله، چې د میرویس نیکه لومړنی ښوونځی پېښور کښې د محترم باز محمد ملیار په مدیریت تامین او چلېده له ما يې وغوښتل، چې د میرویس نیکه تاریخي کړنې ورته ولیکم؛ نو دغه څه، چې دې پاڼو کښې له هغو مراجعو څنې، چې د دې لیکنې په پای کښې ذکر شوی راغونډ کړل ښایي د شاګردانو، استادانو او نورو مینه والو د پام وړ څه په کې نظر ته ورشي او دعا کښې مو یاد کړي په دې کار کښې د ذکر شوي ښوونځي له مدیر (ملیار) صاحب مننه کوم، چې زما د دې تالیف باعث شو او د چاپولو ذمه واري يې هم کړې ده، د میرویس خان ښوونځی لیسې ته ارتقا کړی او د وزیر محمد ګل خان مومند په نوم شوې ده. ما د وزیر صاحب په نوم هم یو کتاب ولیکه، چې د ورځ مجلې په هره ګڼه کښې يې یوه یوه برخه د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز له خوا چاپ او خپرېږي. د هغې د تالیف باعث هم دغه د وزیر محمد ګل خان د لیسې مدیر باز محمد خان ملیار و خو دا، چې خپله بې وزلي دې د استادانو معاش يې له فیس هم نه پوره کېږي کم معاش ۲۰۰ او زیات يې ۱۲۰۰ په تکلیف سره ورته برابروي که مرسته او چنده ورسره ونه شي د ذکر شوي معاش ورکولو توان هم نه لري له دې امله د چاپولو توان نه و د ساپي ذکر شوي مرکز ته مو ورکړ، چې د مضامینو په ډول يې چاپوي او زمونږ هیله دا وه، چې په مجله ډول يې چاپ کړی وای.

لنډه دا، چې د ملیار صاحب لیښې سره، چې د پښتونوالۍ په بنیاد اقتصادي ضعف سره لاس او ګرېوان ده او دغه ضعف په شاګردانو، استادانو او مضامینو باندې هم اغېزه کوي په پښتو او پښتون پالو لوروونکیو شتمنو او با احساسو نیکانو شخصیتونو څخه د تعلیمي او نشراتي ذکر شویو برخو ته د مرستې لاس ورکړي، چې د کرایې، معاشو، لابراتوار، میز او چوکیو او نورو اړونده کړنو چاره یې وشي او د استادانو معاشو او نشراتي امورو کښې یې میاشتنۍ مستمره مناسبه ونډه په غاړه واخلي. مؤلف او لیکونکي هم د حق الزحمي په اندازه ونازول شي، مونږ مخکې له مخې له داسې خدایي بې ریا خلکو مننه کوو الله تعالی دې یو په سله عوضونه ورکړي. مونږ به له ملیار صاحب وغواړو، چې د هر چا د مرستې حساب د اخبار او انټرنېټ له لارې د هغوی د اطمینان لپاره خپور کړي او دا لړۍ جاري وساتي.

**اخځلیک:**

۱ـ انساب الافغانی.
۲ـ مخزن الافغانی.
۳ـ نادر پسر شمشیر.
۴ـ عالم ارای نادری.
۵ـ حصایل السعادت.
۶ـ خورشید جهانی.
۷ـ مجمل التواریخ.
۸ـ مجمع التاریخ.
۹ـ شاه محمود هوتک در اصفهان.
۱۰ـ خلجی ها یا غلجایي ها.

۱۱ – د استرآبادي، محمد مهدي ليکنه (جهان کشایی نادری) تهران ۱۳۴۱.
۱۲ـ ميرويس بابا ۱۳۵۴ کال چاپ کابل بيهقي.
۱۵ ـ تمة البيان فی تاريخ الافغان
۱۲ ـ ميرويس نيکه د پښتو ټولني له خوا په ۱۳۳۵ هـ ش کال کابل.
۱۷ ـ هوتکيان پښتو ټولنه ۱۳۴۵ هـ ش کال.
۱۸ ـ مطالعهٔ تاريخ افغانستان از نگاه عسکری ۱۳۴۷ هـ.ش.
۱۹ ـ بابا هوتک د پښتو ادبياتو تاريخ ۱۳۴۳ دوه يم ټوک د حبيبي ليکنه
۲۰ ـ تاريخ سلطانی ۱۲۹۸ د بمبی چاپ.
۲۱ ـ ميرويس نيکه بحيث مؤسس هوتکيان ۱۳۵۱ (مونوگراف يا پيسې) کابل پوهنځی حقوق.
۲۲ ـ حاجي ميرخان يا ميرويس بابا دريم چاپ د حبيبي په تحشيه او تعليق
۲۳ ـ د افغان ملي تاريخ د قدرت الله حداد (فرهاد) ليکنه د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز د ۱۳۸۳ هـ ش کال چاپ مجلي.
۱ ـ ميرويس که بود و چه کرد آريانا سال چهارم شماره هفتم اسد ۱۳۲۴ ص ۳۷ـ۴
و شمارهٔ هشتم سنبلهٔ ۱۳۳۵ ص ۹ و شمارهٔ نهم و دهم و يازدهم و دوازدهم، شمارهٔ اول سال پنجم شماره سوم، شمارهٔ دوم سال ۲۱ شماره ۹ سال ۲۱ شماره ۱۰-۱۱-۱۲ شمارهٔ سوم و چهارم ۲۲ شمارهٔ ۵ و ۲ و ۲۲ شمارهٔ ۸۴۷ سال ۲۲-۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲.
د افغان ملي تاريخ د قدرت الله حداد ((فرهاد)) ليکنه ۱۳۸۳ هـ کال د ساپي پښتو څېړنو او پراختيا مرکز چاپ.

د افغان ملي تاريخ ۷۲۰ مخ.
د افغان ملي تاريخ ۷۲۰ او ۸۴۴ مخ.
د افغان ملي تاريخ ۸۴۱ مخ
د افغان ملي تاريخ ۷۲۱ مخ.
د افغان ملي تاريخ ۹۱ مخ.
د افغان ملي تاريخ ۸۱۴ مخ.

پای

## مننه

د دې کتاب د چاپولو وړاندیز چې ښاغلي تاریخ پوه قدرت الله ((حداد)) او د ښاغلي پښتو پوهنې دوست امام الدین ساپي په منلو شوی دی او د ښاغلو سر لیکوال عبدالروف قتیل خوږیانی او د ده د دفتر نورو کارکوونکو په زیار خپور شو له ټولو د زړه له کومې مننه کوم او په دواړو دنیاوو کې یې د بریالیتوبونو په هیله یم

پروفیسور ډاکتر قاضي حفیظ الله ښاد جبارخېل

